# څرک



دیارلسم کال، دویمه ، پرلپسې ۹۱مه گڼه، قوس ۱۳۹٤ل، ربیع الاول ۱٤۳۷هق، جنوري۲۰۱٦م

د ستر مفتي مولانامحمدفرید رحمه الله په اړه دفقیه العصرمولانا نورمحمد ثاقب تاثرات



۲۰۱۵ کال دجهادي بریاوو اومهمو تحولاتو په تناظر کې !!

هغه سلیم, شریف او حقاني انسان، چې رانه وکوچېد!

مرحوم سید محمد حقاني ولې ټولو ته محبوب و؟

له ښاغلي خبیراحمد مجاهد سره دڅرک مجلي ځانګړې مرکه

د امیرالمؤمنین د ټاکنې په اړه د فقیه،شیخ الحدیث مولانا محمد اسماعیل رحماني تحقیقي بیان

قطاع الطریق اومحاربین




علمي ، فرهنګي ، ټولنيزه اسلامي خپرونه

دريالسم کال، دويمه، پرلپسې ۹۱ مه ګڼه، قوس ۱۳۹۴ل، ربيع الأول ۱۴۳۷هق، جنوري ۲۰۱۶م

**امتياز :**

دا متيازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کميسيون

مسؤل مدير : عبيد تنوير

ليکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حميد ، جميل مېړنی او افضل محمد تراب

**ګډون :**

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۱۸۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۲۴۰ کلدارې |
| امريکا : | ۶۰ ډالره |
| اروپا : | ۶۰ يورو |
| يوه ګڼه : | ۱۵ افغانۍ<br>۲۵ کلدارې |

**يادونه**

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې دادارې دپاليسي ترجماني وکړي هره ليکنه دليکوال خپل نظر دی.

تخنيکي چارې: تخنيکي څانګه



پتې : srak_111@yahoo.com


# لړليک

سرمقاله




# کال دجهادي بریاوو او مهمو تحولاتو په تناظر کې!!

د۲۰۱۵ کال په پیل کې دگران هیواد افغانستان دحریم اوحرمت داخلي اوخارجي دښمنانو اټکل کړی وو چې دکابل څلورلکه ملي اردواوځارگر جال به ددوی په اند دڅو زره مجاهدینوپه مقابل کې لدې امله پریکنده بریا ولري چې له تیرو څوارلسو کلونو راهیسي-یې دکابل رژیم داردو دبنسټونو، جگړییزي وړتیا اوتجهیز په برخه کې په ملیاردونو ډالر ولگول ، سوونه اوزرگونه غربي اوامریکایي جنرالان اواستادان یې په روزنه ستړي اوستومانه شول، هرډول وسلې، وسایط اولازم تجهیزات یې دهغوی په اختیار کې ورکړل اوترڅنگ یې ډالري میډیا ددغې اردو دڅلولو اوپړسولو په خاطر ډول ډول سندري اوتبلیغات په کار واچول.

دناټواو امریکا دهرجنرالان دشونډو په سر همدا خبره زیاته په شد ومد تاویده چې د ۲۰۱۵ کال په اوږدوکې به ملي اردو په یواځې ځان دطالبانو په وړاندې کلکه اوسخته جگړه وکړي اوهغه سیمي چې دطالبانو په ولکه کې دي هغه به ترینه تصفیه کوي !!

خو دمقتدر رب جل جلاله پریکړه اوفیصله بیا بل خیل وه ،مجاهدینو دروان کال په اوږدو کې نه یواځې خپلې مفتوحه اوپراخې سیمي په ډیرې میړانې وساتلي ،بلکې دچریکي بریدونو ترخوایې دهیواد په گڼو ولایتونوکې ځینوکې جبهه یی جگړې دخاصو تکتیکونو له مخې په داسې ډول تنظیم او پیاده کړي ،چې په ډیرو کمو زیانونو مجاهدینو دکندوزپه ښیر حساس اوستراتیژیک ولایت په بشپړه توگه فتح ، ستړې فوځي زیرمي ، زرگونه وسایط ، ټانگونه، بې شمیره رنجراوپه زرهاوو میله ډول ډول وسلې دمجاهدینو لاسته ورغللې.

دغه راز دکال په اوږدوکې خارجي اوداخلي دښمن په کابل کې ښه وټکول شو په گڼو حساسو تعلیمي، سیاسي ، استخباراتي اوفوځي مرکزونویې په مسلسل اوموثر ډول بریدونه ترسره شول ، دهلمند په پنځو اهمو ولسوالیو اوقرارگاوو سربیره دبیلابیلو ولایتونو شاوخوا ۱۷ ولسوالی او پراخې سیمي مجاهدینو ولکه اوقبضه کړي.

چې دمجاهدینو همدغو حیرانونکوبریدونو اوبریاوو دکابل اداري مورال اوځواک له صفرسره ضرب اوټولې غورځې پرځې یې له خاورو سره خاوري کړي.

دکابل ددوه سري رژیم له واکمنو څخه نوره لار ورکه شوه خپل فریاد یې بادارانو ته ورساوه چې (که عاجلې مرستي ته یې راونه دانگي نوطالبان به لکه دکندوز په ښیر کابل هم ترینه ونیسي.

بادارانو یې هم دڅو ناستو اوسرمشریزو غونډو په ترڅ کې نمایشي ډاډگیرنې ورکړي ،خودعمل میدان ته رادانگل نور دهغوئ هم دوس اوتوان خبره نه وه.

دافغانستان غلیمانو چې په عملي اوجنگي میدان کې تاریخي رسوایي ولیدله ، نو مخ یې ځارگرو اوشیطاني اوتوبوتو ته واړاوه ، داسلامي امارت دموسس، مرحوم عالیقدر امیرالمومنین ملامحمدعمر مجاهد رحمه الله دوفات له اعلان سره سم یې د زهرجنو تبلیغات اوبې استناده افواوو په نشر او اشاعت سره ، هڅه وکړه ترڅو داسلامي امارت متحد صف کمزوری او الله مکړه سره متلاشي یې کړي.

خو الله تعالی داسلامي امارت دنوي زعیم محترم ملا اخترمحمد منصور حفظه الله په ټاکل کیدو داسلام اوهیواد دغلیمانو ټولې حربې او گرد داموته په خپل ځای اووخت کې شنډ اوتارو مار کړل، دافغانستان او اسلامي امت په کچه له نوي زعیم سره له خلوص ډک بیعتونه ترسره شول اوداسلامي امارت مراندي ترپخوا زیات دولسونو زړونو ته ننوتي اودامید غوټي یې راوټوکیدي.

نو ویلای شو چې ۲۰۱۵ کال دکابل دشړیدلي رژیم دڅلور لکه ملي او امنیتي ځواک لپاره دشکست اوماتي ترڅنگ داسلامي امارت دشاندارو فتوحاتو او په نړیواله او سیمه ییزه کچه دمثبتو تحولاتو زیري اوتل پاتي یادونه لرل.

هغه سلیم، شریف او حقاني انسان،

# چې رانه وکوچید!

ذبیح الله مجاهد

مرګ حق دی، الله تعالی ته څوک به د مرګ د خوند له څکلو څخه نشي ورتلای، مرګ د مؤمن تحفه ده، مرګ دالله تعالی د وصال جسر(پل) دی، انبیاء علیهم السلام چې د ځمکې پرمخ تر ټولو غوره انسان حتی موجودات الله تعالی پیدا کړي وو، هغوی هم مرګ څکلی او بیا د ابدیت پر لور تللي دي.

موږ هم مرو او داحقه او د بریا په لور داسې لار بولو چې هر مؤمن خپل وروستي هدف ته رسوي، خو د ځینو خلکو وفات بیا ډیره ستره خلاء رامنځته کوي چې په پاتې شوونو باندې دروند او دوامداره اغیز پریږدي، د ځینو شخصیتونو د ژوند او وفات څخه درسونه اخیستل کیږي، اقتداء پسې کیږي اومثبتات یې خپلیږي او د راتلونکو ژوندیو لپاره خورا پسته او آسانه لارښيي.

ورمه ورځ همدې مرګ چې د هیڅ انسان لمن نه پریږدي، له موږ څخه یو سلیم، شریف او حقاني انسان داسې یوړ چې هیڅ پرې پوه نشو.

داسې یې ناڅاپه رانه په هوا کړ چې تصور یې نشو کولای، غږ یې اوس هم زموږ په غوږ کې دی، کارونه یې لا ناتمام او مشورې یې لا نا انجامه پاتې دي.

د دغه سلیم او شریف انسان وفات ده جناب ته نه! بلکې موږ ته لویه صدمه را ورسوله، داسې صدمه چې له هیڅ اړخ څخه به یې جبیره نشو کړای.

موږ وویل چې یو سلیم انسان مو له لاسه ورکړ:

هو سلیم انسان!

د جناب مولوي سیدمحمد حقاني صاحب

هغه مستعار نومونه چې په جهادی بهیر کې ورته غوره شوي وو او په بیلابیلو کړیو کې پرې پیژندل کیده، هغه دوه نومونه وو، یو سلیم او بل شریف، خپل اصلي تخلص یې حقاني وو، ځکه د دارالعلوم حقانې څخه یې فراغت او د علمي پړاو تکامل شوی وو.

سلیم حاجي یو سلیم الطبع او سلیم الخُلقه انسان وو، داسې سلیم چې هیڅ حادثې، پیښې، ناورین، تاوان او خفګان له خپل ارزښتمند اخلاقي مسیر څخه نشوای اړولای.

په خورا سخت، له کړاو او خفګان څخه ډک حال کې به هم سلیم حاجي د حوصلې او متانت یو سمبول وو، تاته به یې ډاډ درکاوه، حوصله به یې در لوړوله او داسې پریکړه به یې کوله چې ژور تعقل، تدبر او حکمت به په کې کارول شوی وو.

احساساتي انسان نه وو، ستوغ، پوچ، له نزاکت څخه لرې او د ادب له چوکاټه خارج خبره یې نه کوله، که به مشر وو یا کشر، که به دهرې سویې خاوند وو، سلیم حاجي به ورسره د سلیم عقل له مخې برخورد کاوه او دهرچا ارزښت ته په خورا قدر او شرافتمندۍ قایله وو.

د سلیم حاجي بل نوم شریف وو:

شریف حاجي د شرافت یوه نمونه او ټوټه وه، حیاء یې سخته ډیره او په ټولو کړو وړو غالبه وه، د ناستې او پاستې

پروخت، د خوراک او څښاک پروخت، د خوب او ویښې پروخت، د خبرو او غوږ نیولو پروخت او د تګ او سفر پروخت له ورایه ښکاریده چې ته له یو شریف انسان سره مخ یې، داسې شریف چې په هرڅه پوره دی خو د شرافتمندۍ له امله له تاسره ځان برابر بولي، مشر دی خو له تاسره ځان یوشان بولي، عالم دی خو له تاسره ځان لکه ته داسې بولي، له غرور، تکبر، په ځان فخر، او ریاء څخه ډیر لرې او پاک.

دشریف حاجي تخلص حقاني وو:

حقاني صاحب دحق ویلو، حق دید، حق اوریدلو، حق منلو او حق اوسیدلو یو دنګ منار وو، کله به یې چې یقین وو چې دا لاره حقه ده، د هیڅ شي په بدل کې یې هم هغه مسیر نه پریښود، د منازعاتو او مشاجرو په اړه د فیصلې پرمهال به یې حق ته کتل، دغوصې او خفګان له امله له حق څخه نشو تیریدای، د عمر تر پایه په حق پاتې شو او له حق سره ملګری دحق په لاره له حق سره وصل شو. ولله المنة

مولوي سیدمحمد حقاني صاحب د هیچا ترمنځ شخړه او اختلاف نه غوښت، له هغو کړو وړو څخه سخت لرې او په فاصله کې اوسیده چې د اختلاف سبب به ګرځیدل، د خپلو وروڼو ترمنځ، دخپلوانو ترمنځ، دملګرو ترمنځ، د خپل جهادي صف ترمنځ او حتی دعامو مسلمانانو ترمنځ تل د خبرو، تفاهم، درګذر، حوصلې او یو دبل د احترام غوښتونکی وو.

کله به چې خبر شو د چا ترمنځ اختلاف واقع شوی، حتما یې لومړی د تلیفون په مټ، بیا د ورتګ او لیدو کتو په مټ او په نهایه کې د مجلسونو او مکرر ناستو په مټ، دعلماء کرامو په ملګرتیا او د هوښیارو خلکو څخه د مشورو په وسیله به یې هغه خفګان او اختلاف له منځه وړ.

زما یاد دي چې داوسیدو په شاوخوا سیمه کې به یې د دوو دلګیو مشرانو یا جهادي سرګروپانو ترمنځ هم کوم مشکل واقع شوی وو، نو به یې خپله سعیه نه سپموله او رسیدګي به یې کوله، د اسلامي امارت په صف کې دننه یې د اختلاف په وړاندې سخته مبارزه او ډیرې هڅې او کوښښونه کړي دي، هرڅوک چې هرځای له امارت څخه خوابدی شوي او مایوسه شوی دی، حقاني صاحب په هغو ځان ستړی کړی چې تر ډیره یې مخلصانه هڅو نتیجه هم ورکوله.

حقاني صاحب د مجاهدینو سخت دوستدار وو، هرمجاهد ډیر لوړ قیمت ورته درلود، خصوصا مشران مجاهدین ملګري یې خپل وجود اوتن بلل او په مخکې یې هرډول قربانۍ ته تیار وو.

دعلماء کرامو او مشائخو یې سخت درناوی درلود، ډیر په نرم، له ادب او اخلاقو ډک حالت کې به ورسره مخ کیده، قدر به یې کاوه او خبروته به یې د تعجبونو په اظهار(شه!!!؟) دقیق غوږ نیوه.

دهر ملګري سخته ډیر قدر شناس وو، دهرچا منزلت او مقام یې ډیر ښه او په آسانۍ سره درک کولای شوای، له هر چاسره به یې رویه او کړنه له عطوفت او مهربانۍ څخه ډک وه.

دروند عادت یې درلود، دروند انسان به یې خوښیده، خبرې او عمل یې له درنښت څخه ډک وو.

تر دې حده چې د اسلامي امارت په اعلامیو او ځینو رسمي نشراتو کې به یې د داسې الفاظو استعمال ته اجازه نه ورکوله چې مقابل جانب ته به په کې یوډول هم سپکې او سپورې ویل شوي وی، تل یې هڅه کوله چې د اسلامي امارت پالیسي او دریځ خورا دروند، قدرمن او له عزته ډک وي، په استدلال کې به یې ویل چې نبي کریم صلی الله علیه

وسلم ځومره دښمنان درلودل او ځومره د کفارو لخوا کړیدلی وو، خو بیا یې هم په هیڅ حدیث کې سپک الفاظ او سپکه خبره نشو ثابتولای.

په تیر پسرلي کې یې راته وویل ( هغه مې روانه کړې ده چې دخپل ژوند ټول کړه وړه له نبوي سنتو سره برابر کړم)، اوس مې هغه او مطالعه پیل کړې هغه حدیث راټولوم او سره یوځای کوم یې چې د ۲۴ ساعته ژوند انځور پکې شوی وي، او هیله لرم چې خپل ژوند مې هم د نبوي سنتو چوکاټ ته مکمل داخل شي او دلیکل شوو احادیثو لنډه مجموعه د نورو مسلمانانو د استفادې لپاره هم تیاره کړم)، په هغه وخت کې یې د راټولو شوو احادیثو شمیر ۴۷ ته رسولی وو.

له بیت المال سره محتاط، په جهادي کارونو کې ډیر حریص او په ټول صف کې د ډیر نظم غوښتونکی او طرفدار وو.

د ملګرو او هرچا سره برخورد به یې دومره صمیمانه او له نزاکت څخه ډک وو چې یوه خبره به یې څو ځله له بل چا څخه هم اوریدلې وه، خو کله به چې تا په ناخبرۍ کې بیا ورته بیانوله نو به دغسې درته متوجه او غوږ وو، لکه واقعا چې له تا څخه یې اوس او نوې اوري، تر دې حده چې تعجب به یې هم درته کاوه او لابه یې دمعلوماتو په ورکړه کې تشویقولې.

حقاني صاحب له هرچا سره د لیدو په وخت کې متبسم وو، خندان به وو او په خورا ورین تندي به مخ کیده، د ملګرو دشخصي ژوند په اړه به یې هم پوښتني کولې، ځان به یې خبراوه او هڅه یې کوله چې د ملګرو او متعلقینو ژوند یې ښه او خوشحاله وي.

د روغ رنځور پوښتنه به یې کوله، دیخ او ګرمۍ په موسم کې به یې ستا په حال ځان آګاه کاوه او د غم یا مصیبت پر وخت به یې ترخپله وسله لاس درسره کاوه، نصحیت، دصبر او استقامت تلقین به یې درکاوه.

لنډه داچې حقاني صاحب دې په څنګ کې موجود وو تابه فکر کاوه چې یو ښه مشفق او مهربانه ورور درسره دی او خورا به پرې ډاډه او تکیه وې.

حقاني صاحب دکارونو په اړه ډیر حریص او با مسئولیته وو، ډیر پرکاره او نوښتګر وو، د رایې او نظر خاوند وو، د کار په مهال به یې پیچلو مسائلو ته خورا ښه او له تدبیر څخه ډکه لار پیدا کوله، په مجالسو کې به یې د هرچا نظر په خورا ښه ډول اوریده، ښه ټکي به یې په خوښۍ سره منل، د چا ناسم نظر به یې په خورا خوښۍ او معقول ډول ځواباوه او هغه ته به یې قناعت پرې ورکاوه.

دحقاني صاحب وفات، ان شاءالله ده جناب ته دالله د وصال لار لنډه کړه، خو پاتې شونو ملګرو، ورونو، اولادونو او ټولو دوستانو او متعلقینوته یې داسې عملي درس ورکړ چې که څوک یې په لاره لاړ شي، خوي او عادات یې خپل کړي، اخلاق او رویه یې تعقیب کړي نو به لکه دی همداسې محبوب او منلی شخصیت ترې جوړیږي، مرګ د ټولو پسې دی، ټول د ده غونډې په یوه بهانه مرو خو باید داسې مړه شو چې هیڅوک رانه خفه نه وي، هیڅوک مو زهیر کړی نه وي، هیڅوک مو بد یاد نکړي او ټول راپسې د هجر او فراق په اور کې اوښکې تویې کړي او ساندې ووهي.

اللهم اغفره وارحمه ولاتعذبه، وتجاو زعنه و ادخله الجنة النعيم ونسئلک صبراً جميلا و اجراً جزيلاً وصلى الله تعالى على خيرخلقه محمد وآله و اصحابه اجمعين يا رب العلمين

داسلامي امارت له نوميالي ځېړونكي اوليكوال،

# محترم ملاخبير احمد مجاهد سره

## دځرک مجلي ځانګړې مرکه:

دمحترم منصور صاحب په توسط الله تعالی امارت له تړوټه كيدو او انشعاب څخه بچ اوداسلام د دښمنانو شومي هيلي نابودي وكرزيدي.

**پوښتنه :** په دې ورستيو کې ديوشميرملايانو له لوري داسې يوه فتوا رسنيو ته مخې ته راغلي ، چې داسلامي امارت دزعيم او امير په ټاکنه يې ملاحظات ښکاره کړي اوترټولو خطرناکه خبره پکې دا راوړل شوي ، چې په اوسني وخت کې ددوئ په اند شرعي امير وجود نلري ، نو ځکه يې په مخالف جانب دباغي حکم نشي ـ کيدلای ، تاسې دغه فتوا ليدلي ؟ اوڅه فکر کوي چې ددغه ډول فتواوو ترشا څوک ولاړ اوقرار لري ؟

**ځواب :** هو دغسې څه پاڼي او دستخطونه دفتوا په نوم خپاره شوي اوماهم وليدل ، شک نشته چې داسلامي امارت واحد زعامت او دتصميم نيوني واحده مرجع ، دنړيوال استعمار ، سيمه ييزو دښمنانو اوداخلي غليمانو په سترګو کې له ډيره وخته تيره اوځورونكې ازغی وو، دوی سخت په انتظار کې وو چې څه وخت به داسلامي امارت موسس عاليقدر اميرالمومنين ملامحمدعمر مجاهد وفات اوياشهيد شي ، نو بيا به دوئ داسلامي امارت دټوټه کولواوويشلو شيطاني طرحي ته دعمل جامه وراغوندي ، يعني داسلامي امارت په داخل اوصفوفوکې به طالب مشرانواوقومندانانوته داذهنيت ورکوي ، چې تربل هرچا همدوئ دقيادت او زعامت لپاره زيات حقدار اومناسب خلک دي ،يعني بايد راپورته شي اوبلوا ګډه کړي .

خو چې کله الله تعالی داسلام لوی اورښتيني خادم اوداسلامي امارت موسس ، محترم ملاصاحب خپل لورته وباله اودوفات خبريې نشرـ شو اوپه ځای يې محترم ملااخترمحمد منصور حفظه الله داهل حل وعقد دمجلس له لوري غوره اودهيواد د۳۴ ولايتونو امارتي مشرانو ، واليانو ، قومندانانو ، مجاهدينو علمای کرامو مشايخو او داسلامي امت جهادي اوديني قائدينو ورسره مخلصانه بيعتونه ترسره کړل اومنصورصاحب يې دامير په صفت ومانه ، نويوشمير حلقي اوځيري چې شمير يې سخت لږ اوهيڅ ډول حساب نه پرې کيده اونه پرې کيږي ،هغوئ له همدې ډول ناروا او شعارونه سره چې ګواکي دزعيم په ټاکلوکې عجله شوي ، دشورا اکثريت اعضا نه وو حاضراويادا چې منصور صاحب اتفاقي امير نه دی او جانب مقابل او مخالف يې باغي نه شميرل کيږي ، نو په دغسې بهانه جوييو او غلطو پروپاګندو يې پيل وکړ، خبره تردې مخ ته ولاړه چې دوه دری تنه په خپل منځ کې کيناستل يوه ځان امير او نورو ځانونه مرستيالان اعلان کړل .

زما تحلیل داده چې ددغو خبرو شاته هماغه زوړ غلیم او مغرضي حلقې موجودي دي، چې داسلامي امارت وحدت اودتصمیم نیوني حاکمه او مسلطه مرجع نشي۔ تحمل کولای اوداامارت په صفوفو کې دجنګ اوسولي طرحي اومصنوعي څیري نشي۔ خوندي کولای، نوځکه په هرنامه کوشش باسي، ترڅو اسلامي امارت کمزورې ډله رابرسیره کړي، دواحدقیادت هغه برم اوهیبت یې ورو څپي، چې دهمدغو موخو لپاره یې وینو چې ډول ډول حربي او منفي تبلیغات یې په کار اچولي، چې دفتوا بازیو لړی هم دهمدغو حلقو هڅه ده چې دځینو ساده لوحو څیرو په شکل کې بروز اوشهرت ورکوي.

خو نتیجه ځکه نلري چې اوس لله الحمد اسلامي امارت ترپخوا زیات مستحکم او مسلط دی، څوک داسې لوی مشکل نشي۔ جوړولی، هرڅوک په دې پوهیږي چې یوځل څوک دامارت مخلص او دمرحوم ملاصاحب نقش قدم تعقیبوي هغه به هیڅکله هم نه په دغسي تبلیغاتو تیرنه ووزي اونه به یې په ذهن او فکر کې کوم خلل راشي، ځکه منصور صاحب مرحوم ملاصاحب ټاکلی وو او تربل هرچا ورته محبوب اوپوره اعتماد یې پرې درلود اودملاصاحب په ژوند اوبیا دهغه له وفات ورسته یې چې داسلامي امارت کومه مدبرانه اوابرومندانه رهبري کړي داسلام اوجهاد دلاري سپاهیان به یې هیڅکله هیره نکړي، همداراز منصور داسې ندی چې په زور او جبر یې الله مکره قیادت اورهبري قبضه کړي، بلکې دغه دروند بار ته داسلامي امارت درهبري شورا اکثریت غړو او نومیالیو مشایخو مجبور او اماده کړ او داخو یو واقعیت هم دی چې له ملاصاحب ورسته په اوس وخت کې منصور صاحب یو لوی غنیمت او انعام دی چې الله تعالی ولورواوه، چې دهغه په توسط امارت له ټوټه کیدو او انشعاب څخه وژغورل شواو دجهاد بنسټونه بیرته محکم وګرځیدل.

هو هغه څوک چې مثبت تنقید او مستنده دیني ملاحظه ولري، پکار ده چې احترام ورته وشي، غوږ ورته ونیول شي اوبیرته دامارت په غیږ کې ونازول شي، ولې هغه څوک چې بنیادي کینه په زړه کي لري، دځان دنصبولو او حاکمولو کوشش کوي او یا پردی طرحي عملي کوي، زما په اند دغه رنګه خلک الله تعالی خپله له دې صف څخه تجریدوي او باسي یې ځکه الهي وعده ده چې لیمیزالله الخبیث من الطیب و یجعل الخبیث بعضه علی بعض فیرکمه جمیعا فیجعله فی جهنم«؛)سوره انفال/آیت ۳۹) یعني چې الله تعالی، ناپاک اوپاک سره جدا اوتصفیه کړي او وګرځوي ناپاکه خلک بعضی په بعضي باندي او دوی ټول سره راجمع اوپه جهنم کې واچوي.

**پوښتنه :**

په فتوا کې دزابل جنګ ته هم ګوته نیول شوي، هغه یې خپل منځي جنګ بللی، تاسي په دې باب څه نظر لرئ؟

**ځواب :**

نه پوهیږو چې دزابل جنګ ته ځیني خلک په کوم دلیل خپل منځي جنګ وایی، څو میاشتي چې په مسلسل ډول یوچاته عذرونه وشي، داسلامي امارت له لوري لوړپوړي وفدونه ځانونه ستړي کړي، استادان اوعلمای کراموانتهایي ستوماني وګالي او ځولی ورته وغوړوي چې او ( منصور دادالله) دالله په خاطر له اختطاف ګرو اوداعشیانو څخه لاس واخله حمایه یې پریږده اومنصور دادالله هرځل درانه وفدونه ځوابوي اوسپکاوی یې کوي، هغه بله کومه لار وه چې اسلامي امارت غوره کړي وای ؟

زه به تاسي ته دزابل دهغه راپور هغه څو جملي چې داسلامي امارت لخوا هغه وفد ته چې دزابل زبده اوجید علمای کرام پکې شامل ووپه لاس ورکړل شوي وو او اختیار ورسپارل شوو چې دغه مادي مونږ دستړپه سترګومنو که منصور دادالله ورته غاړه کیږدي

هغه داچې که (منصور دادالله له داعشیانو ځان جلا کړي موږ ورسره کار نلرو، تاسو ورشئ زاری او خواست ورته وکړئ چې له داعشي- ازبکستانیانو ځان جلا کړي په دې لاندې خبرو کې که هره یوه مني موږ ورته حاضر یو. ۱ – که په امارت کې کار کوي لبیک ورته وایو خدای دې راولي. ۲ – که په امارت کې کار نه کوي ستاسو میلمه دی تاسو چې مناسب بولئ همالته دې اوسي د کور خرڅ او د لسو شخصي پیره دارانو خرڅ به هم امارت ورکوي بیغمه دې اوسي خو د امارت خلاف فعالیت به نه کوي. ۳ – که د امارت اوامر نه مني له دې ځایه دې لاړ شي دلته دې خلکو ته مشکلات نه جوړوي. ۴ – او که مخالفت هم کوي او له دې سیمې هم نه ځي نو بیا دې له ازبکستانیانو ځان جلا کړي تاسو ورته یو کلې مشخص معلوم کړئ د امارت مجاهدین به هغه کلي ته نه ورځي او نه به ورسره کار لري خو له ازبکستانیانو جلاوالی یې ضرور دی ځکه امارت مجبور دی چې آخر د ازبکستاني داعشیانو په خلاف عملیات وکړي ځکه دوی له داعش سره یوځای شوي، په امارت یې بغاوت کړی امر او اصول نه مني او په دې ټول ولایت کې یې جهاد او مجاهدینو ته لوی جنجالونه او بدنامي پیدا کړي دي) خو منصور دادالله دغې یوې خبرې ته هم غاړه کینښود .

له هغه ورسته چې داعشیانو دمنصور دادالله په مرسته دلویی لاري مسافر وتښتول چې پکې ښځې اوسپین ژیري هم وو او حتی له تښتول شوو ښځو سره دداعشیانو دهرډول فیجعو اعمالو راپورنه هرچا واوریدل اوپه دغه کار سره دافغان ولس اومیشتو قومونو ترمنځ دجنګ اوداخلي تصادف لوی تصادم او اور بلولو ته لمن ووهل شوه ، نو ایا اسلامي امارت ته جایزه او مناسبه نه وه چې ددغسي طواغیتو او جنایتکارونو جرړي یې ویستلي وای ؟

یوځوک چې داسلامي امارت په خلاف دداعش ملا ټینګوی ، بې وزله مسافر ښځې اوماشومان تښتوي اوفجیع اعمال ورسره ترسره کوي اودظلم اوبربریت یو دور حاکموي ، دهغو مخه چې اسلامي امارت ونه نیسي- نو ځوک به یې نیسي ایا لوی ملاصاحب دهمدغسي- جابرانوپه خلاف ددغه امارت بنسټ نه وو ایښي ؟

**پوښتنه :**

په دې ورستیو کې داسلامي امارت دزعیم په اړه په مسلسل ډول داخبرونه او اوافواوي خپري شوي چې ګواکي هغه په خپل منځي تاوتریخوالي کې ټپي او بیا شهید شوی ، ددغو اوازو په خپراوي کې ستاسي په اند دچا لاس دخیل وو او خاص هدف یې څه وو ؟

**ځواب :** شک نشته چې محترم منصور صاحب ، ځو کاله داسلامي امارت قیادت اورهبري په داسې شرایطو کې په خورا مدبرانه او مشفقانه انداز ترسره کړه ، چې مرحوم عالیقدر امیرالمومنین ملامحمدعمر مجاهد رحمه الله ژوندی وو ، په دې معنا چې مرحوم ملاصاحب دخپل رحلت ترپای شیبو پورې دمنصور صاحب له کړنو څخه خوښ اوپوره اعتماد یې پرې درلود

له بل اړخه منصور صاحب دجهاد او امارت په ټولو اموروکې که هغه داخلي وو که خارجي ، الله تعالی ترینه لاسبری اوسرفرازه راوویست ، دمجاهدینو ترمنځ یې داخوت اووحدت فضا په بیساري ډول حاکمه وساتله، داخلي او نړیوال دښمن ته یې دخاصو تکتیکونو له امله په هرمیدان کې تاریخي شکست او ماتي ورکړه ، ولس یې نور په امارت او مجاهدینو رامات او همکار وګرځاوه او دسیاست په میدان کې یې داسلامي امارت برحق دریځ دنیا ته دخپلو ویښو مطبوعاتي اودیپلوماتیکوسرچینواو استاځو په ژبه په رسا اومنطقي ژبه ورساوو ، تردې چې دوست او دښمن ته ثابته شوه چې اسلامي امارت یواځې دفوځي ډګر وړتیا او اتلولي نلري، بلکې په سیاسي او دیپلوماتیک میدان کې هم الله تعالی ددې توان او استعداد ورکړی چې له خپلې تګلارې او موقف څخه کلکه دفاع اوساتنه وکړي .

دغه راز له هرچا سره دافکر وو چې که لوی ملاصاحب وفات شي ، نو څوک به دهغه ځایناستی گرځي اوپه څه ډول به مجاهدین ، مسؤلین او علمای کرام په هغه متفق کیږي ، الله تعالی همدغه منصور صاحب دیوه منل شوی ، اتفاقي او مهربان زعیم او رهبر په توگه رامخي ته کړ ، له هغه سره دسرتاسري افغانستان او اسلامي امت په کچه سرشاره اوله خلوص نه ډکو بیعتونو داسلام او هیواد ددښمنانو ټول فریبونه او دسیسې خنثی او دقیادت لویه او مهمه موضوع الله تعالی حل وگرځوله.

په دې وخت کې داسلام او هیواد غلیمانو او هغو حلقو چې په زړونو کې یې له ډیره وخته نفاق او حسد ځای نیولی وو او داکرغیړن هوس یې په ذهن کې گرځیده چې څنگه متحد اسلامي امارت ټوټه ټوټه او داسلام دغه مرصوص صف کمزوری ووینې ، نو د عالیقدر منصور صاحب بیساري مقبولیت او جامعیت له ډیرې کینې په جنون راوستل ، په مختلفو حربو یې لاس پورې کړ ، چا ته یې دادنده وسپارله چې دقیادت په ټاکل کیدو اعتراضونه وکړي، چا ته یې دا وظیفه ورکړه چې دبیلې ډلې جوړیدو لپاره گواښونه وکړي او څه نمایشي غونډې ترسره کړي او څوک یې دیته وگمارل چې په منصور صاحب اونورو مشرانو باندې بې ځایه تورونه ولگوي .

او چې کله په دغو ټولو شیطاني دسیسو کې ناکام او مختوري شول ، نو دورستی سلگی په توگه یې دمنصور صاحب دزخمي کیدو او شهادت تشو افواوو او شایعو ته مخه کړه .

خو څنگه چې داسلامي امارت اساس په پاک نیت او خلوص ایښودل شوی او ډیرې پاکې وینې ددغه صف دساتنې او برې لپاره نذرانه شوې او په هغه سربیره دالله ددین در ښتینې خادم اوداسلامي امارت دموسس مرحوم امیرالمومنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله دعاگانې چې ددې صف او اساس لپاره یې کړې کلک باور دی چې الله تعالی به هغه قبولې کړې وي، نو که داسلام دښمنان هرڅومره لومې اودامونه په کار واچوي او داسلامي امارت دزعامت کمزوري وغواړي، الله تعالی به یې رسوا اوشرمنده کوي .

غلیم دافکر درلود چې محترم منصور صاحب به دورستیو افواوو په اړه خاموشي غوره کړي او دطالبانواوعام ولس اذهان به کرار کرار داخبره واخلي چې خدای مکړه په رښتیا هم څه حادثه رامنځته شوې،ولې دمحترم زعیم تاریخي او هراړخیزې وینا که له یوې خوا دخپل مجاهد ولس او مسلمان امت زړونه ټکور او ډاډه کړل ، ترڅنگ یې داستعمار په استخباراتي شبکو او اجیرو مطبوعاتو داسې کارنده گوزار هم وکړ چې نور به یې یوه خبره هم چاته داوریدو اوباور وړ نه وي اولدې ورسته چې هره خبره دوی کوي، خلک به ورته وایي چې تاسې دروغجن اوکذابین یې .

مناسبه ده چې میډیا او خبري رسنې خپل تشخص او حیثیت دهغو افواهاتو په خپرولواونشر داغمن او بې اعتباره نکړي چې هیڅ حقیقت ونلري اوصرف استخبارتي حلقې یې دوی ته په اختیار کې ورکوي.

دغه کار دمطبوعاتو رول مشکوکوي او دا خبره په حقیقت بدلوي چې زیاتره رسنی داستعمار په چوپړ کې بوختې اومصروفې دي.

# دجدي دشپږمې په پلمه!!

عبيد- تنوير

دجدي ٦ چې زمونږ په گران هيواد افغانستان دسرو لښکرو دوحشيانه تجاوز اوهجوم له ورځې سره مصادفه ده ، كه هرڅومره ددغې نيټې اوورځې دفجايعو په اړه ليكل وشي ، كم اولږ به ځكه وي چې دروسانو دناولي او ناترسه يرغل له ورځې راپه دې خوا چې نيږدي څلورلسيزي جوړيږي اوس يې هم په زمونږ په هيواد كې منفي اثرات او ناوړينونه روان او افغان ولس ترينه سخت په كړاوو كي دى .

د ١٣٥٨ل كال دجدي په شپږمه نيټه دپخواني شوروي سرولښكرو ، ديولك لس زره پوځيانوپه مټ اودداخلي لاسپوڅو(خلقيانو اوپرچميانو) په مرسته په افغانستان يرغل راوړ ، لس كاله په مستقيم ډول روسان اوڅوكاله يې اجيران دافغان مظلوم ولس په خلاف په ډيره بې رحمى وجنگيدل، يونيم ميلون مسلمان هيوادوال يې شهيدان ، درى ميلونه يې معيوب ، اوله پنځوميلونوزيات يې هجرت او كډوالى ته اړويستل .

افغان ميړني ولس ، داستكبارله لاسه دغه ټول كړاوونه ، اوړده ناوړينونه اوقربانى تحمل او وزغمل ، خوله خپلې برحقې داعيي اوپاك عزم څخه يوه لويشت هم وروسته اوشاته نشول.

هماغه وو چې الله تعالى ، دمتحدافغان ولس دتورې اومتين عزم په نتيجه كې نه داچې دشوروي وحشي ځواك مات او دزرگونو عسكرو په وژل كيدو يې دافغانستان خاوره پريښوده، بلكې دافغان جهاد په بركت دټول شوروي اتحاد امپراطوري هم محوه اونابوده وگرځيده.

اوس چې دپخواني شوروي دكرغيړنو لښكروله شكست اوگونډه كيدوڅخه ٣٧ كاله تيريږي، دافغانستان خاوره اومسلمان ولس ديوبل جهان خور استكبار ( امريكا) ترناروا اومكار يرغل اووحشت لاندې شپې اوورځې تيروي.

امريكااومتحدينويې ديونيم لكو عسكرواو پرمختللي جنگي ټكنالوژۍ سربيره ٤لكه ملي اردو او يونيم ټريليون ډالر په كار واچول اوخپل ټول زور يې وواهه ، ترڅو دافغان ولس ديني غرور اوبه اودخپلواكى گټلوله داعيي څخه يې واړوي

خو الله تعالى، داسلامي امارت تر قيادت لاندې دافغان ننگيالي ولس په جهادي متو كې دومره قوت او هيبت واچاوه، چې دامريكا او ٤٩ اشربانو هيوادونو ، قووتونه او طلسمونه يې يوپه بل پسې- رسوا اوله شكست سره مخ كړل، خبره اوس دې سرحدته ورسيده چې امريكايان غواړي دسيمې اونړيوالو فشارونوپه نتيجه اړكړي ترڅو طالبان دكابل له كاواكه اداري سره خبرو ته كښينوي اوپه دې ډول ځانته مصنوعي پوزه جوړه كړي .

کله چې امریکایانو په افغانستان یرغل راووړ ، روسي جنرالانو صرف امریکایانو ته همدا توصیه کوله چې پام افغانستان دهضمولو هیواد او ولس ته یې دتسلیمولو خیال اوفکر ونکړی ، خو امریکایان چې دخپلې فوځي تکنالوجی دغرور په نیلی سپاره او دعقل سترګي یې ورپټي کړي وي ، دروسانو یادوني یې اوتی بوتی ګڼلي ، چې اوس دهماغه روسانو له برخلیک او ذلیل حالت سره لاس اوګریوان دی .

همداډول لکه چې روسي جنرال مایروف له افغانستان څخه دتیښتي په مهال دامو په سیند دافغانستان جګړه دروسانو لویه اشتباه او جفا وبلله ، دافغانستان اوپاکستان په هکله دامریکاخاص استاځي (هالبروک) کله چې دمرګ په بستر په پروت وو ، داخبره یې په صراحت وکړه چې دافغانستان جنګ باید نور ودریږي او په هره بیه چې وي امریکایي پوځیان دي له افغانستان څخه راوویستل شي، ځکه نور امریکایان هلته جنګ نشي ګټلای.

خلاصه داچې روسان اوامریکایان دواړه دافغانانوقسم خوړلی غلیمان و اودي، روسانو داشراروپه نوم وژل اوامریکایان یې دترهګروپه نوم؛ خو الله تعالی شوروي دافغانانوپه میړانې دنابودی کندي ته وروغورځاوه اورهبرانویې اعتراف هم وکړ چې دافغانستان اشغال دشوروي دنسکوریدوسبب وګرځید، ولې امریکایان لاهم په دې فکرکې دي چې دشوروي په برخلیک به نه اخته کیږي ، ځکه چې مجهزه تکنالوجی لري اوله بل لوري دامنیتي تړون په لاسلیک سره به دافغان ولس له ګوزار څخه په امان کې پاتې شي .

خو دابه ددوی دجهل او سرتمګی ورستی حد او یو پوچ خیال وي .

# متلونه

١ ، تر ټولو غټ دولت دموردعا ده.

٢ ، په دنیا کښې فقط دمور مینه سوچه ده.

٣ ، په کور کښې پلار برکت او مور راحت ده.

٤ ،مورنی ژبه دمورنه زده کیږي ځکه دمور غوندي خوږه وي.

٥ کور په دیوالونو نه په کورنی ښکلئ وي.

٦ ، دسړي شخصیت په صورت نه په سیرت جوړیږي

٧ ، دمشرانو قدر کوه که ته مشر شوې کشران به دې قدر کوي.

٨ ، اولاد به ډیر په خوږه او لږ به ئی په ترخه پوهوې

٩ ، پر خبره ي څومره سوچ وشي هومره پخه شي

١٠ ، مینه کوه خو دهوس څخه ځان ساته

11 ، چې هوښیار وې دځان صفت به نه کوې

12 ، دبدن ستوماني خوب راولي او دذهن ستوماني ئی تښتوي.

13 ، په عمر سړئ هله پوهیږي چې ورنه تیر شي.

14 ، چې دهرچاوي هغه دهیچا هم نه وي.

15 ، شیطان له پیل نه تر پایه انسان په لوړه ویروي

16 ، سړئ چې نرئ وي نو زمرئ وي چې غټ وي نو لټ وي.

17 ، دژوند ګران کارونه په همت اسانیږي.

18 ، مسلسل همت دښه ژوند ضمانت دئ.

19 ، طمع سړئ تیټوي او همت ئی لوړوي.

20 ، دسیوري په اړیدو دونې قدنه لوړیږي.

21 ، دښارنه لرې خلک دمیلمه ډیر قدر کوي.

22 ، غره ته که ختل ګران دي نو ترې کوزېدل هم اسان نه دي.

# د حقاني صاحب پر فراق څو کرښې

سید سعید

کل نفس ذائقة الموت ثم الینا ترجعون

مرګ هغه تریخ حقیقت او واقعیت دی چې هیڅوک په هیڅ ځای کې نشي ترې خلاصیدای، که کوم شخص هر څومره ډیر ژوند هم وکړي بالاخره به دمرګي غیږي ته پناه وړي او د څواکمن څښتن تعالی حضورته به حاضریږي« کل نفس ذائقة الموت ثم الینا ترجعون«

داسبابو په نړۍ کې د مرګ د کیف، وخت او لامل په اړه انسان سره بیلابیلي پوښتني ا وتوجیهات موجود وي، وخت په وخت یې څیړي او بیانوي، خو واقعیت دادی چې الله تعالی یې په خپل معجز کلام کې توضیح کوي:« اذا جاء اجلهم فلا یستاخرون ساعة ولایستقدمون«

په ډیري خواشینۍ سره مي خبر ترلاسه کړ چې د حلم،علم،پوهي،تدبیر او اخلاص ځلانده ستوری (الحاج مولوي سید محمد حقاني صاحب) زموږ داسمان له مداره راولوید.

انا لله وانا الیه راجعون!

مولوي سید محمد حقاني دکندهار ښار اوسیدونکي ؤ، دطالبانو داسلامي تحریک په ابتداء کې ددغه خوځښت سره ملګری شوی او په مختلفو پوستونو یې دندي ترسره کړي دي، د کندهار داطلاعاتو اوکلتور رئیس،د بهرنیو چارو وزارت معین، پاکستان کې د افغانستان سفیر او دچارو داداري د عمومي رئیس په توګه یې اوږده موده د افغانستان په اسلامي امارت کې نه هیردونکي خدمتونه کړي دي.

پرافغانستان د امریکایې یرغل څخه وروسته دجهادي مقاومت په لومړنیو کلونو کې داسلامي امارت د فرهنګي کمیسیون د مرستیال په حیث غوره شوی ؤ چې دوفات تر وخت پوري یې همدا دنده په ډیره ښه توګه سرته ورسوله.

حقاني صاحب د فرهنګي کمیسیون دمرستیال په صفت د فرهنګي او مطبوعاتي جهاد د لا ښه موثریت په موخه ډیري خولې توي کړې،مختلفو سیمو ته یې سفرونه وکړل، ستړیاوي، بې خوابۍ یې وزغملې، په مطبوعاتي او فرهنګي ډګر کې یې د سنګر د مجاهد کماحقه ترجماني وکړه او له بیلابیلو لارو څخه په استفاده یې دامارت برحقه داعیه هیوادوالو او نړیوالو ته واوروله.

مرحوم حقاني صاحب متواضع، حليم، پوه، زړسوانده او د عالي اخلاقو څښتن مجاهد مشرؤ، په کومه ناسته او اداره کي چي به نوموړی دخپلو ماتحت ملګرو سره ناست ؤ، چي کوم څوک يې په مشرئ خبر نه وای بيخي ګومان به يې نه وای کړی چي نوموړی ددې ادارې او ياناستي په راس کي دی.

حقاني صاحب ته تشريفاتو او تکلفاتو خوند نه ورکاوه، دنوراني څيرې خاوندؤ او زياتره وخت به يې پرشوندو موسکا خپره وه،سياسي او فرهنګي پيچلي مسايل به يې په سړه سينه او سليسه ژبه څيړل، عالم او ډير شريف شخصيت ؤ.

د مطبوعاتي جهاد د پياوړتيا په موخه يې د عالمانو او ليکوالو کورونو او کار ځايونوته تګ راتګ کاوه،هغوی يې تشويق کول، د خدمت زمينه يې ورته برابره وله، مشورې يې ورسره کولې او وخت په وخت به يې دفرهنګي ملګرو د جوړ ناجوړ پوښتني ګرويږني کولې.

اته کاله وړاندي مې حقاني صاحب د قدردان استاد انجنير عبدالله ګل ريان صاحب په کور کي وليد، دامي له نوموړی سره لومړنی ملاقات ؤ خو دومره صميمانه او ظريفانه چي تا به ويل په کلونو کلونو ملګري سره پاته شوي يو، دهماغه لومړنی ملاقات خواږه مي تراوسه پوري په حلق کي شته، د حقاني صاحب سره د نورو ليدنو کتنو خواږه يادونه او ښکلي خاطرې مي اوس د حافظې په سکرين زيرو بم کيږي او دنوموړي خندانه څيره مي تر سترګو سترګو کيږي، لوی رب دي ترې راضي شي.!

داروانښاد حقاني صاحب سره مي ډيره موده په يوه اداره کي کار وکړ، داسي چي مرحوم امير زه مامور وم، خو هيڅکله مي نه خپله د نوموړی څخه يوه ترخه خبره اوريدلې اونه مي هم د بل ملګري څخه داسي څه اوريدلي او ياحس کړي چي د اروانښاد حقاني څخه دي ګيلمن او يا خسته شوی وي.

د مرحوم مولوي سيد محمد حقاني صاحب د مرګ خبر ډير غمونکی دی،بيلتون يې ډيرګران او دردونکی دی، د حقاني صاحب فراق نه يوازي د نوموړي کورنئ او ملګرو ته، بلکي داسلامي امارت لپاره لويه ضايعه ده.

الله تعالی دي خدای بخښلی حقاني ته جنت الفردوس او عالي مقامات ور په برخه کړي، بچيانو،ورونو،کورنئ، دوستانو او ملګرو ته دې صبر جميل او اجز جزيل ورکړي. امين

# دشهيد مولوي رضاء الله مشهور

## په ملا عاجز د ژوند او کارنامو ته کتنه

شهيد مولوي صاحب عاجز چې اصلي نوم يې رضاخان وو او په ملا رضاءالله عاجز او ملا پلليک باندې يې شهرت درلود د دوست محمد زوی، د محمد دين لمسی او په قوم (دِلبيک) وو چې د خپلې علاقې يو با غيرته او بهادر قوم شمېرل کېږي؛ نوموړی د لغمان ولايت د عليشنگ ولسوالۍ د ماسموت عليا کلي اوسېدونکی وو.

### زوکړه :

شهيد مولوي صاحب عاجز په ۱۹۸۰م کال کې په خپلې مذکوره سيمې کې دې دنيا ته سترگې غړولې وې.

### زده کړه :

شهيد مولوي صاحب لومړنۍ زده کړې د پاکستان په مردان سيمه کې د يو مخور او تکړه ديني عالم مولوي عبدالحی پهلوان صاحب سره وکړې او ابتدايي کتابونه يې له همدې عالم څخه ولوستل او پاتې نور فنون يې د پاکستان په مختلفو سيمو لکه مردان ، پېښور، کوهاټ ، اسلام آباد او کراچۍ په مختلفو او مشهور مدارسو کې ولوستل او بيا يې د دوره حديث لپاره په (۱۴۲۶هـ ق) کال کې د پاکستان د خيبر پښتونخوا په ستر ديني مرکز دارالعلوم حقانيه اکوړه خټک کې داخله واخسته او د فراغت سند يې ترلاسه کړ.

### د جهاد پيل :

نوموړی يو با استعداده او د صلاحيت خاوند عالم وو، نو له همدې کبله غوښتل يې چې د دعوت تر څنگ د جهاد په سپېڅلي لاره کې په عملي ډول د خپل دين او قوم خدمت وکړي په همدې سلسله کې کله چې د نړۍ تر ټولو ستر وحشي ځواک په افغانستان تېری وکړ، اسلامي نظام يې ړنگ کړ او د هيواد په بېلابېلو سيمو کې يې وحشيانه عمليات او بمبارونه پيل کړل نو د هيواد د نورو سيمو په څېر يې د لغمان ولايت د عليشنگ ولسوالۍ د ماسموت عليا په سيمه کښ په وحشيانه ډول بمباري وکړه چې په ترڅ کې يې تقريباً (۳۸) عام وگړي شهيدان او زخميان شول؛ په دې ظالمانه بمبارونو او ظلمونو سره د مولوي صاحب جهادي عزم او جذبه چې لا د وړاندې پارېدلی وه قوي شوه او مولوي صاحب په قاطع او څرگند ډول خپل عمليات پيل کړل.

شهيد مولوي صاحب په ډېره کمه موده کې په خپلو چريکي او تعرضي بريدونو کې لوی شهرت تر لاسه او د دښمنانو توجه هم ورته ورځ تر بلې زياتېده.

مولوي صاحب ته د اسلامي امارت د مشرانو له لوري په مکرر ډول د ځينو لويو مسؤوليتونو د ترسره کولو وړانديزونه کېدل خو مولوي صاحب به ويل چې زه هر قسم خدمت او قربانۍ ته تيار يم او د ژوند تر وروستي سلگۍ پورې به د اسلامي امارت په صف کې خپل خدمت تر سره کوم خو د مشکيلاتو له امله د مسؤوليت له منلو معذرت غواړم.

کله چې وحشي- صفته صليبيانو او د هغو داخلي بې وجدانه اجيرانو يو وار بيا د عليشنگ ولسوالۍ د ماسموت عليا په کلي يوه لويه چاپه ووهله او د کلي پاس جگې غونډۍ باندې يې مورچې نيولې وې شهيد مولوي صاحب له خپلو

ملګرو سره پرې تندریز برید وکړ او ګڼ شمېر امریکایان یې مړه او ټپیان کړل چې د ۷ امریکایي عسکرو مرګ ژوبله له رسنیو هم تایید شوی وه.

دا چې امریکایي یرغلګرو به د ماسموت په ساحې په مکرر ډول چاپې وهلې او په دې سلسله کې ولسي خلکو ته درووند مالي او ځاني زیان رسېده او دښمنانو هم خلکو ته د خپلو ظلمونو او تیریو یواځینی سبب په دې سیمه کې د مولوي صاحب موجودیت ګاڼه نو په همدې سبب کلیوالو له مولوي صاحبه څخه وغوښتل چې له سیمې دي هجرت وکړي؛ نو مولوي صاحب هم د نورستان ولایت د دواب ولسوالۍ د ژونیا درې ته مهاجر شو تقریباً څو کاله هلته مېشت وو.

## تقریر او شاعرۍ په پښه یې ژبه کې:

شهید مولوي صاحب عاجز نه دا چې یو با شجاعته او زړور مجاهد وو بلکه یو جید او فصیح واعظ او یو تکړه شاعر هم وو؛ مولوي صاحب به اکثره په پشه یي ژبې بیانونه کول او شعرونه به یې لیکل؛ مولوي صاحب د دعوت او شاعرۍ په برخه کې دومره شهرت پیدا کړ چې د لغمان ولایت برسېره ځینو نورو ځنګ لوریو ولایتونو لکه نورستان، کاپیسا، او د کابل ولایت په ختیځو سیمو کې مېشتو پشه یي قومونو په سیمو کې به د مولوي صاحب غږ د مساجدو په لوډسپیکرونو او موبایلونو او نورو وسایلو نه به اورېدل کېده او حتی ماشومانو به په لارو او کوڅو کې د مولوي صاحب ترانې په ډېر خوند زمزمه کولې.

دا چې مولوي صاحب به د یو نوښت په ډول عقیدوي او نظریاتي مسایل په داسې ډول په مضحکو او خوشحالوونکو کلیمو کې پیل چې د هر چا توجه به ورته جلب کېده نو په همدې سبب مولوي صاحب د یوه ځانګړي سبک خاوند بللی شو.

د زندان حالات: شهید مولوي صاحب عاجز یو ځل د یرغلګرو په لاس بندي هم شو او د جلال اباد په مرکزي محبس کې یې ۱۷ میاشتې قید تر کړ؛ مولوي صاحب د بند په بهیر کې د شجاعت او زړورتوب داستانونه پرې ښودل چې د هغه مهال زندانیان یې تر اوسه پورې یاد ساتي؛ مولوي صاحب به په زندان کې د موجوده امریکا جوړې ادارې په وړاندې په ښکاره ډول جهادي بیانونه کول او د زندان موظفینو تعذیبونو او اخطارونو هیڅ پروا یې به یې نه کاوه.

## شجاعت او بهادري :

دا چې مولوي صاحب به همېشه د کورني او اقتصادي مشکیلاتو سره لاس او ګرېوان وو چې د لغمان او نورستان په ساحو کې به کېدل؛ د مولوي صاحب د حق ګویی په برخه کې بې مثاله وو او د سیمې هغه اربکي او ظالم قوماندانان به یې په خپلو شعرنو کې په څرګند ډول یادول چې تر هر چا په ظلم او وحشت کې تیر وو؛ دوی به مولوي صاحب ته بار بار اخطارونه ورکول خو مولوي صاحب به ورته ویل چې زه د شهادت غوښتونکی او ارمان جن یم او په دې لاره کې له هیڅ چا وېره نه لرم.

## شهادت :

دا چې یرغلګرو او دا خلي غلامانو د مولوي صاحب د شهید کولو او یا هم د نېولو لپاره ډېر کوښښونه وکړل او د دې لپاره یې د سر بیې جایزې هم اعلان کړل خو مولوي صاحب بیا هم الله(جل جلاله) دی د دښمنانو له شره وژغوره بل اخیره شهید مولوي صاحب (۲۰۱۳م/۲۴/نوومبر)نېټه چې د ( ۱۳۹۲هـ ش / ۳/ قوس) سره سمون خوري د خپلو ملګرو سره د لغمان مرکز مهترلام ښار په ختیځې څنډې کې پروت د شمتې په سیمه کې د اربکیانو په یوې پوستې د شپې په محال برید وکړ، مولوي صاحب د استشهادیانو په ډله کې وو ؛ د پوستې د فتحې په جریان کې مولوي صاحب د خپل یو بل تکړه ملګري حمیدالله کفرشکن سره یو ځای په شهادت ورسېد. [اناالله وانا الیه راجعون ]

# مرحوم سید محمد حقاني

# ولې ټولو ته محبوب و؟

قاري حبيب

مرحوم مولوي سید محمد حقاني مې له تیرو اوو کلونو راهیسې پیژاند،له ډیره وخته سره ملګري و، د ۲۰۰۹م کال د اوړي له هغې ورځې چې په لومړي ځل سره شناخته شوو بیا تر پرون یک شنبې چې په اوښلنو سترګو مو د یوه تل یاد ملګري په حیث ورسره مخه ښه وکړه او د عقبی په خوامو رخصت کړ.رحمه الله تعالی

د مرحوم مولوي سید محمد حقاني د وفات په اړه د ده د ملګرو او عامو هغو خلکو چې نوموړی یې پیژاند غبرګون او د محبت اظهار تر معمول حد زیات و، په فیسبوک، ویب پاڼو او عامو مجالسو کې ډیرو خلکو ورباندې افسوس وکړ او حتی هغو خلکو هم ورته خورا ډیره مینه ورکړه چې نوموړی په ژوند کې یوازې یو ځل لیدلی او په یوه مجلس کې یې ورسره شرکت کړی و.

د نوموړي لپاره د مسلمانانو تر منځ دا محبوبیت ډیر ستر افتخار دی،ځکه دالله تعالی په نزد د یو چا د محبوبیت او مبغوضیت تر ټولو ستره علامه داده چې نوموړی د ځمکې د خلکو په زړونو کې ځنګه ځای لري،که څوک د الله تعالی دمخلق په زړونو کې محبوب وي نو بې له شکه دالله تعالی په نزد هم

محبوب دی ځکه د بخاري او مسلم حدیث دی چې : عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهم عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللَّهَ إِذَا أَحَبَّ عَبْدًا دَعَا جِبْرِيلَ فَقَالَ إِنِّي أُحِبُّ فُلَانًا فَأَحِبَّهُ قَالَ فَيُحِبُّهُ جِبْرِيلُ ثُمَّ يُنَادِي فِي السَّمَاءِ فَيَقُولُ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ فُلَانًا فَأَحِبُّوهُ فَيُحِبُّهُ أَهْلُ السَّمَاءِ قَالَ ثُمَّ يُوضَعُ لَهُ الْقَبُولُ فِي الْأَرْضِ وَإِذَا أَبْغَضَ عَبْدًا دَعَا جِبْرِيلَ فَيَقُولُ إِنِّي أُبْغِضُ فُلَانًا فَأَبْغِضْهُ قَالَ فَيُبْغِضُهُ جِبْرِيلُ ثُمَّ يُنَادِي فِي أَهْلِ السَّمَاءِ إِنَّ اللَّهَ يُبْغِضُ فُلَانًا فَأَبْغِضُوهُ قَالَ فَيُبْغِضُونَهُ ثُمَّ تُوضَعُ لَهُ الْبَغْضَاءُ فِي الْأَرْضِ. متفق علیه بزیادة فی روایة مسلم

ابي هريره رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله چې الله تعالی له یو چاسره محبت لري نو جبریل راوغواړي او ورته ووایي چې زه له فلان شخص سره محبت لرم ته هم ورسره محبت کوه،نو جبریل ورسره محبت کوي او بیا جبریل اهل السماء ملائکو ته ووایي چې الله تعالی له فلان شخص سره محبت لري تاسو هم ورسره محبت کوئ،بیا ملائکه هم له هغه شخص سره محبت لري تر دې چې وروسته دغه محبت ځمکې ته رانتقال شي او الله تعالی همدغه کس په ځمکه کې هم محبوب وګرځوي.

بالمقابل بغض یا بدایسیدل هم کټ مټ همداسې دي،د الله تعالی په نزد چې څوک مبغوض وي،نو د هغه کس په اړه حضرت جبریل ته وایي

چې فلانی زما بدایسي ته هم ورسره بغض کوه،بیا جبریل هغه شخص بد ایسوي تر دې چې جبریل نور ملایکو ته ووایي چې فلان شخص د الله تعالی مبغوض دی بیا یې ملائکه هم بدایسوي تر دې چې د نومــوړي شخص په اړ بغض دځمکې مخلوق ته رانقل شي او د ځمکې پر مخ هم هغه مبغوض شي او د هرچا نفرت ترې کیږي.

د دې متفق علیه حدیث له مخې په اسلامي ټولنه کې د یوچا لپاره عام محبوبیت د سعادت خورا ستره نښه ده چې د ډیر بختور شخص به په نصیب کیږي. دلته زه د حاضر او ناظر الله تعالی په وړاندې د مرحوم حقاني صاحب تزکیه نه کوم او نه یې هم معصوم بولم،مګر د خپلو ملګرو او عامو خلکو تر منځ د بې کچې محبوبیت درلودو له امله د لوړ حدیث شریف مضمون ته په پام سره د نوموړي د عامه محبوبیت ځینې علتونه درسره شریکوم،که الله تعالی وکړي دغه صفات د یو مکلف انسان په حیث شخصا په ما او ټولو انسانانوکې پیدا کړي ترڅو د الله تعالی د محبت او مقبولیت وړ وګرځو او د الله تعالی د مخلوق د ازار، اذیت،تحقیر او بالاخره عامه منفوریت په ځای له هغوی سره ښه تعامل ولرو او د یوه سالم،مثبت او ګټور شخص په حیث د ټولنې په سعادت،جوړښت او رفاه کې ونډه واخلو.

د حقاني صاحب یو ستر خوی شرافت او لوړه اخلاقي رویه وه،نوموړی داداري سلسله مراتب له اړخه زموږ مشر و، مګرد ټولو ملګرتیا په ترڅ کې مې له نوموړي هیڅکله داسې قول،فعل یا چلند حس نه کړ چې ځان د نوموړي په نسبت حقیر یا تر امر لاندې حس کړم،نوموړي په اداري ماحول کې له کارکوونکو سره په افقي تعامل باور درلود، تجربو ثابته کړې چې په اداري ماحول کې د عمودي تعامل په نسبت افقي چلند په مراتبو ښه اثر لري،په افقي چلند کې آمر خپلو ترلاس لاندې کسانو ته د مأمورینو نه بلکې د ملګرو په نظر ګوري، فرمان یې د أمر نه بلکې د التماس په لهجه وي او د ملګرتیا یو ماحول یې جوړ کړی وي، په اصل کې دا چلند د رسول الله صلی الله علیه وسلم طریقه ده،چې خپل تر لاس لاندې کسان یې اصحاب یعنې ملګري بلل،له هغوی سره تعامل یې بشپړ طبعي او د لوړو دیني انساني اخلاقو او صمیمیت ډکه مالامال و.

د مرحوم حقاني صاحب بل صفت چې له امله یې نوموړی په هر چا خوږ لګېده،خوشرویي،همیشنی موسکا او مینه ناک چلند و،هیڅکله یې غوسه او سخت ګیري نه کوله، د ترخو تجربو د زغم ، له پامه غورځولو او هیرولو چل یې زده و.

نوموړي د شرافت او اخلاقو کرښو ته همیشنی تعهد درلود، هیڅکله په ټیټو او کم ارزښته موضوعاتو نه غږېده، هیڅکله مې د ضدبازۍ، سیالۍ، انتقام، قومپالنې، منطقه پرستۍ ، تاوېلي ماوېلي او دغسې نور مبتذل او بې ارزښته بحثونه حتی په ډیرو خصوصي مجالسو کې هم ترې وانه وریدل،د ګیلې، شکایت او غیبت عادت یې نه درلود او تر ډیره حده یې په اشخاصو بحث نه کاوو بلکې په موضوعاتو به غږېده.

په شخصي لحاظ پاک او حیاناک و،له همیشنی او ظرافت سره سره مې نه یادیږي چې د بې باکۍ تر حده دې ټوکې کړې وي، له خلکو سره یې چلندد هغوی د عمر،منصب،استعداد او ټولنیز مقام په

اساس نه بلکې د خپل شرافت او مروت په مبنی و،هر مسلمان ته په احترام قائل و، د مجلس په مهال یو ښه اوریدونکی و چې د مخاطب خبره به یي په پوره شوق او داد سره اورېده.

د جناب حقاني صاحب ښه چلند دده ټولو متعلقینو ته معلوم و خو دلته مې دا موضوع ځکه راپورته کړه ترڅو یي د یوه حقیقت رابرسیره کولو لپاره بهانه کړم. نن سبا په انسانانو کې د استعدادونو کمی نشته، د ښه صورت ، ځیرکی او بیلابیلو فني،علمي او تخنیکي استعدادونو کسان خورا ډیر دي، حتی ویل کیږي چې اوسنی انسان دومره هوښیار شوی چې د شپږم ټولگي شاگرد د دوه زریزي پخواني فیلسوف افلاطون په نسبت ډیر معلومات لري،خو نن سبا چې انسانان د کوم صفت له فقر سره مخامخ دي هغه انسانیت یا سړیتوب دی.

له دیني او منطقي اړخه د انسان د کمال صفت مروت دی، مروت له مرء یعني سړي لغت څخه اخیستل شوی چې مطلب یي سړیتوب یا جوانمردي ده،مروت چې له دیني اړخه د احادیثو د روایت او شهادت لپاره مهم شرط بلل شوی ټولو مکرمو اخلاقو ته شامل دی،مروت په انسان کې هغه ملکه یا قریحه ده چې انسان په هر حال کې د حسنه اخلاقو او ښه تعامل په کولو په طبعي شکل مجبوروي او له بدو ، پستو او ناشایسته کړنو څخه یي راگرځوي.

نن سبا په دنیا کې تر ټولو ارزښتمن شی پیسه یا مال بلل کیږي اما د ځوانمردانو په قاموس کې د پیسې او دنیوي گټې په نسبت سړیتوب او اخلاقي حیثیت خورا ډیر ارزښت لري. د فارسي مشهور شاعر فردوسي همدې حقیقت ته داسې اشاره کړې.

ز بهر درم تند و بدخو مباش

تو باید که باشی درم گو مباش

یعني د پیسې یا درهم لپاره تند او بداخلاقه مه جوړېږه،ځکه (ته) باید وې،درهم که نه وي هم پروا یي نشته .مطلب دا چې اخلاقي حیثیت یو داسې ارزښت دی چې د هیڅ شي په مقابل کې هم باید له لاسه ورنکړل شي.

په پای کې به ووایم چې جناب حقاني صاحب خو نه دومره سرمایه دار و چې په خلکو یي خیراتونه او صدقې کړې وي او بیا د هغه له امله په خلکوکې محبوب شوی وي او نه یي هم منصب دومره اجتماعي او ستر و، خو نوموړی چې له هرچا سره مخ شوی یوازې ورسره په مسنونه طریقه، په پراخ تندي،په خوشرویه څیره اوهغوی ته په اهمیت ورکولو ورسره مخامخ شوی،چې له همدې امله ورته الله تعالی د مسلمانانو په زړونو کې داسې ځای ورکړ چې تصور یي نه کېدو.

الله تعالی دې په جناب حقاني رحم وکړي او برکات ته یي په ورونو او اولادونو کیږدي . آمین یارب العلمین

# د حقاني صاحب په یاد کې

محمد سهیل شاهین

خدایه څه شول هغه ښکلی ښکلی خلک
په ظاهر په باطن سپین سپیڅلي خلک

مرگ حق دی، یوه ورځ راتلونکی دی خو د عالم مرگ د عالم مرگ وی، هغه هم د هیواد د تاریخ پدی نازکه مرحله کی چی پوهو او مجاهدو علماوو ته له بل هر وخت نه زیاته اړتیا ده. حقانی صاحب هم د داسی علماوو څخه و.

زه حقانی صاحب له نږدی پیژنم. په اسلام آباد کی د افغانستان په سفارت کی ورسره د کار کولو ویاړ لرم. په ډیرو ملاقاتونو کی به دواړه یو ځای وو. د عالم او مجاهد ترڅنگ هغه یو ښه دیپلومات هم و. ځیرک، باریک بین او پوه. د هیواد اسلامي او ملی مصالح یی ښه تمثیلول او ډیر ورته گران و. اجتماعی گټی یی په شخصی گټو مقدمی گڼلی.

هغه وخت مو د ډیرو هیوادونو له سفارتونو سره اړیکی درلودی. په یوه میلمستیا کی چی زمونږ له خوا د انگریزانو څخه د افغانستان د خپلواکی د بیا اخیستلو د کلیزی د لمانځلو په مناسبت جوړه شوی وه، د څلویښتو هیوادونو څخه د زیاتو هیوادونو سفیرانو او دنړیوالو سازمانونو استازو پکښی گډون کړی وو. دا پداسی حال کی وه چی د نړیوالی ټولنی په تیره بیا د غربی هیوادونو رسمی تگلاره داوه چی اسلامی امارت منزوی کړی او بیلا بیل تورونه به یی پری لگول خو د حقانی صاحب او ورسره ملگرو د نه ستړی کیدونکو دیپلوماتیکو هڅو له امله ډیرو هیوادونو ته د امارت اصولی موقف روښانه شوی و او راشه درشه یی ورسره درلوده.

حقانی صاحب ددیپلوماتیک فعالیت ترڅنگ مطبوعاتو ته هم پام درلود. هغه وخت چی نوموړی په اسلام آباد کی د افغانستان سفیر و، له رسنیو سره به یی وخت په وخت مرکی کولی. د امارت په خلاف لگیدلی تورونو ته به یی معقول ځواب وایه. کله کله به دغه مرکی او مطبوعاتی بیانونه دومره مؤثر و چی ځینی غربي سفارتونه به مجبورشول چی رسنیو ته مخه کړی او زمونږ ځواب ووایی.

په هغه وخت کی نړیوالو ته زمونږ پیغام دا و چی د نړیوالو له خوا د امارت د منزوی کولو، کمزوری کولو او د زور له لاری خپلو مقاصدو ته د رسیدلو پالیسی به په افغانستان او سیمه کی نوی مسائل وزیږوی. خو دا خبره هغه وخت نه چا اوریده او نه یی منله. د زور او سازش د پالیسی عواقب نن موږ په افغانستان او نړی کی وینو او دوی یی هم وینی. افغانستان او نړی په جبه زار بدله شوې چی یو قدم اخلی بل یی په ځمکه کی ننوزي.

یوې قوی ستنې حیثیت درلود. لاسته راوړنې یی په نړی کی موافق او مخالف دواړو ته معلومی دی. نړیوال مطبوعات او د نړی حکومتی حلقی د امارت د مطبوعاتو په قوت او مؤثریت اعتراف کوی. په لږو وسایلو او نامساعدو حالاتو کی یی له هغو ټولو نه میدان وړی چی هرڅه په اختیار کی لری. لاکن د دی بری ترشا د همدې هستي لوی لاس و. الله تعالی ددوی درنی کورنی ته صبر جمیل او اجر عظیم نصیب کړی او الله تعالی دی اسلامی امارت ددغه شان حقپالو، اسلامپالو او هیوادپالو هستیو څخه نه خالی کوی. کار، یاد او استقامت یی د لاری ډیوه ده.

ستـــاد ښایســت گلونه ډیر دی
ځولۍ می تنگه ده، زه به کوم کوم ټولومه

# دمجاهدینو په نوم!

# قطاع الطریق اومحاربین

م ـ سعید

وجاهدوا بأموالکم وانفسکم فی سبیل الله ذلکم خیرلکم ان کنتم تعلمون ط

جهادچې په عباداتوکې یوخاص مقام لري تردي پورې چې په ټولونیکواعمالوکې بهترین عمل ورته ویل شوی دی،ډیرزیات فضائل یې په قران کریم اواحادیثوکې راغلي دي چې علماء کرامولوی کتابونه په دې موضوع لیکلي دي په یوځوپاڼوکې یې راټولول ناشونی دی،خودومره باید ووایو چې جهاد داعلاءکلمة الله اودالله تعالی درضا حاصلولو لپاره اجراوثواب لري ،که اعلاء کلمة الله یعنې دالله تعالی کلمه (دین) پورته کول په کې مقصودنه وي بلکې یواځې مال اوزرمطلب وي اویاداسې نوراغراض په کې وي نوداجهاددالله تعالی په نزدجهادنه بلل کیږي.جهادهغه دی چې خالص دالله تعالی درضالپاره وي له دنیاوي اغراضو بایدبلکل پاک وي.امام بخاري پخپل کتاب کې یوباب منعقدکړی دی(باب لایقال فلان شهید)اوپه دې باب کې یې دهغوخلکومتعلق چې دوی دالله تعالی درضالپاره جهاد نه وي کړی بلکه دنورودنیوي اغراضولپاره یي کړی وي ډیرې واقعې رانقل کړي دي.

او هغه خلک چې دمسلمان په مال اوناموس باندې حمله کوي،مال ورنه اخلي اویاناموس ورڅخه اخلي اودالله تعالی داحکاموخلاف کوي دوی ته محاربین ویل کیږي له دوی سره جهادله قران اواحادیثونه ثابت دی.په قران کریم کې رب العالمین فرمایلي دي: انماجزاءالذین یحاربون الله ورسوله ویسعون فی الارض فساداان یقتلوااویصلبوااوتقطع ایدیهم وارجلهم من خلاف اوینفوامن الارض ذالک لهم خزی فی الدنیاولهم فی الاخرة عذاب عظیم.

ژباړه: یقیناجزاءدهغه کسانوچې جنګ کوي دالله تعالی اورسول صلی الله علیه وسلم سره اوکوشش کوي په ځمکه کې دفسادداچې قتل شي دوی یاپه سولۍ کړی شي دوی اویاپرې کړی شي لاسونه اوپښې ددوی ادل بدل اویاوشړل شي له ځمکې نه داددوی شرمندګي ده په دنیاکې اودوی لپاره په اخرت کې عذاب لوی دی.

وعن ابی هریرة رضی الله عنه قال جاء رجل فقال یارسول الله صلی الله علیه وسلم ارایت رجل یریداخذمالي قال فلاتعطه قال ارایت ان قاتلني قال قاتله قال ارایت ان قتلني قال فانت شهیدقال ارایت ان قتلته قال هوفی النار

ژباړه:له ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی چې یوسړی راغی ویي ویل :یارسول الله صلی الله علیه وسلم ته ماته خبرراکړه یوسړی چې زمامال اخلي(یعنی څه وکړم)نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل:مه یی ورکوه.هغه وویل خبرراکړه که ماسره جنګ کوي نبی علیه السلام ورته وویل :ته ورسره جنګ وکړه .هغه وویل :که ته خبرراکړې که ماله قتل کړي؟نبی علیه السلام وویل:ته شهیدیې،هغه وویل:ته خبرراکړه که زه یی قتل کړم؟نبی علیه السلام وویل:هغه په اورکې دی.

دلته دایوه مسئله ډیره ضروري ده چې بیان کړی شي هغه داده چې ځینې خلک دجهادپه نوم له خلکونه په زوره مالونه اخلي اوداکاردثواب بولي خوحقیقت دادی چې دجهادپه نوم له چانه په زوره مال اخیستل دالوی ظلم دی چې په دې کې دانسانانو تښتول (اختطاف) هم داخل دی ځکه چې له اختطاف نه زیات شمیر نقصات راپیداکیږي چې یوڅویي دادي: (۱)داختطاف په وجه له خلکونه مالونه په نارواطریقه اخیستل کیږي ځکه چې اختطاف کوونکي ددې لپاره اختطاف کوي چې له خلکونه پرې مالونه واخلي اوله خلکونه مالونه اخیستل په داسې طریقه چې دهغوی خوښه اورضانه وي داشرعاحرام اونارواعمل دی. نبي کریم صلی الله علیه وسلم په هغه ورځ باندې چې فرمایلي دي:الاان الله حرم علیکم دمائکم واموالکم واعراضکم کحرمة یومکم هذافی شهرکم هذافی بلدکم هذا رواه البخاري.ژباړه:خبردار!الله تعالی ستاسووینې اومالونه

محترم گرځولي دي لکه داورځ،دامیاشت اوداښاریي چې محترم گرځولی دی.دحجة الوداع په موقع باندې دعرفات په میدان کې په داسې حال کې چې محسن انسانیت خطیب اعظم خاتم الانبیاءمحمد مصطفی صلی الله علیه وسلم دزرگونوصحابه کراموپه موجودگئ کې اعلان وکړچې خبرداردمسلمان وینه،مال اوعزت الله تعالی ته داسې محترم دي لکه دغه ورځ(نهم دذوالحجې)،دغه میاشت (ذوالحجه)اودغه ښار(مکه معظمه)چې څنگه الله ته محترم دي.

ددې خبرې دښه وضاحت لپاره دلته دتبوک دغزااجمالي ذکرکوو،دتبوک غزاچې دهجرت په نهم کال پیښه شوې ده جیش العسرة اوغزوة العسرة هم ورته ویل کیږي دامام طبراني اودسیرت دنوروعلماوپه قول چې دسختې گرمئ شپې ورځې وې په مدینه منوره کې کجورې پخې شوې وې اودمدینې دخلکوهمداکجورې دمعاش ذریعه وه ،له قوي اومغروردښمن سره دمسلمانانومقابله وه، اووه سوه میله اندازه دجهادلپاره سفرؤ، دوه کسانومجاهدینوته یوه سوارلئ وه ،سخت فقراوفاقه وه، له دې ټولوتکلیفونو اوسختیو سره سره دیرش زره مجاهدین دجهادپه نیت دقربانئ لپاره تیارشول اودنبی علیه السلام امرته یی لبیک ووایه.ددې جنگ سبب داووچې نصاری عربوهرقل ته خط ورولیږه اوپه کې ویي لیکل چې داسړی چې راوتلی دی اودنبوت دعوه کوي کمزوری شوی دی که ته له مونږسره کومک وکړې اودده په خلاف یوه منصوبه برابره کړې،هغه ورته یوشمیرجنگیالي راولیږل.کله چې نبی علیه السلام ته خبرراورسیدچې هرقل اودلحم اوجزام قبیلوعرب نصاری اراده لري چې دنبی علیه السلام مقابلې اوجنگ لپاره حجازته راشي په داسې حال کې چې داډیرې دسختئ اوتکلیف شپې ورځې وې خوصحابه وبیاهم جهادته شانکړه اوپه پوره تابعدارئ سره یی دنبی علیه السلام امرته لبیک ووایه.نبی علیه السلام صحابه کراموته دچندې کولوامروکړصحابه کرام چه ډیرسترې اوستومانه و،خوبیایی هم په پوره ایماني جذبې سره په زړه پورې چنده وکړه،نبی علیه السلام دخپلواصحابو په دې کارډیرزیات خوشحاله شواورب العالمین هم ددوی ستاینه په قران کریم کې وکړه اوهغوکسانوته یی زورنه ورکړه چې ددې چنده کوونکو پسې رد بد وایي.رب تعالی فرمایي:الذین یلمزون المطوعین من المومنین فی الصدقات والذین لایجدون الاجهدهم فیسخرون منهم سخرالله منهم.له دې قیصې نه مونږ داخبره رامعلومه شوه چې دجهادلپاره چنده کول په داسې طریقه چې دورکونکي خپله رضااوخوښه وي ډیرښه کاردی اودنبی علیه السلام طریقه ده .نبی کریم صلی الله علیه السلام له چانه په زوراوزبردستئ سره څه نه دي اخیستي اونه یي په چاباندې دالازمي کړې ده چې ته بایدخامخادومره اندازه مال راوړې اوکه یی رانه وړې نوبیابه تاته سزادرکوو.بلکه خپلوملگروته به یی ترغیب ورکاوه اوهغوئ به یی چندې ورکولوته تشویق کړل.

(۲)ددې منحوس کارله امله له مسلمانانونه دسکون ژوندپورته کیږي اوژوندیي په ډاراوویره کې تیریږي چې داهم د شریعت په رڼاکې حرام اوناروادی .نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دي:لایحل لمسلم ان یروع مسلما.(مشکوة شریف ۳۰۸ص).

ژباړه:نه دی روا مسلمان ته چې دی بل مسلمان وډارکړي.ددې حدیث په تشریح کې محدیثینولیکلي دي چې مشهورتابعي ابن ابی لیلی فرمایلي دي :مونږته صحابه کراموبیان کړی دی چه یوځل مونږله نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره په یوه سفرکې ملگري ؤ،یوصحابي ویده شواوبل صحابي رسئ دهغه ترجاموپورې وتړله چې په دې سره هغه ویده کس وډارشونونبی علیه السلام وفرمایل :لایحل الخ ددې حدیث مطلب دادی چې هرمسلمان لپاره دبل مسلمان وروروېرول اوډارول حرام دي که هغه په خبروسره وي لکه دهمکي ورکول اویاپه عمل سره وي لکه یومسلمان ته ټوپک نیول اویا په نوروطریقوسره وي.له جهادنه مقصدپه دنیاکې دامن اوصلح قایمول دي نه دخلکوویرول.دنبي کریم صلی الله علیه وسلم له غزواتونه بلکل داخبره ښکاره ده چې دهغوئ په مقابل کې کوم خلک چې جنگیدل دهغوئ اهداف دنیاته واضح دي چې له کلونوکلونونه راپه دې خواله فساد،انسان زورنې ،غلا، چپاول، شوکمار، قتل،وحشت اوقوم پرستي سره عادت ؤ،هغوئ نظام نه درلوداودروغ اوپټ مندژوندتیرولولپاره یي په خپل مینځ کې معقول اومتفقه اصول نه درلودل،بدامنئ اوفساداوج ته رسیدلی ؤ.نبی کریم صلی الله علیه وسلم هغوئ له شرک،بت پرستئ غصب، غلا اولوټ مارئ نه منع کړل اودیواوریښتني خدای عبادت ته یی راوبلل ،دظلم اوزورتوره پرده یی له ټولنې ټوله کړه اودانصاف رڼایی په نړئ کې خپره کړه.

(۳)داختطاف لپاره اختطاف کونکی پخپل مسلمان وروربانډې اسلحه اوچتوي چې داهم په شریعت کې نارواعمل دی. نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: من حمل علینا السلاح فلیس منا (مشکوة شریف ص۳۰۵).

ژباړه:څوک چې پرمونږباندې اسلحه اوچته کړي هغه له مونږڅخه نه دی. داسلحې له اوچتولونه اگرکه په ټوکوکې هم وي سخت وعیدراغلی دی ،ځکه چې ددې حدیث پسې متصل په مشکوة

شریـف کې داحـدیث هـم دی چې رسـول الله صـلی الله علیـه وسـلم فرمایلي دي چاچې یواځې اشاره وکړه مسلمان وروړته پـه وسـپنې سره نـوبې شـکه پـه دغـه کـس بانـدې فرشـتې ترهغـه پـورې لعنـت وایـي څوپورې يي چې هغه وسپنه نه وي ایښې.

(۴)اختطاف دمسلمانانوپه ټولګي کې فتنه خپرول دي چې داهم په شریعت کې نارواعمل دی. نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایي:

مـن خـرج علی أمـتي یضرب برهاوفاجرهاولا یتحـاشی مـن مومنهاولا یفی لذی عهدعهده،فلیس منی ولست منه.رواه مسلم

(۵)څوک چه قطاع الطریق دي همدوی اختطاف کونکي هم دي ځکه چې دقطاع الطریق شرطونه پـه دوی کې پـه بشپړه توګـه شته دي،چې یو شرط یی دادی : ان یکون لهم شوکة ومنعة بحیث لم یکن للمارة المقاومت معهم ژباړه: دوی به پوره قدرت لري په داسې شان سره چې لاروي ددوی دمقابلې اومخ نیوي توان ونلري.

فتاوی عالمګیري لیکلي دي:

والمکابربـاالظلم وقطـاع الطریـق وجمیـع الظلمـة والاعـوان والسعات یباح قتل الکل یثاب قاتلهم کذافی البحـر الرائـق (فتـاوی عالمګیري ج ۲ص۱۶۷)

ژبـاړه:څوک چـې پـه ښکاره ظلم کـوي ،لارې وهـي ، ظالمـان اودهغـوی کومـک کـونکي اودفسـاد خپرولـو والا ددوی ټولـو مـرګ روادی اوقاتل ته به یی خدای پاک ثواب ورکوي.

(٦)په فتاوی تنقیح الحامدیه کې راغلي دي:

سئل فی رجل عوانی مفسدغمازیسـعی فی الارض بالفسـادویقع الشر بین العبادویغری علی أخذالاموال بالباطل وذبـح العبـادویوذی المسلمین بیده ولسانه ولایدع عن تلک الافعال الابالقتل فماحکمـه والجواب اذاکان کذالک اذااخبرجم من المسلمین بذالک یقتل ویثاب قاتله لمافیه من دفع شره عن عبادالله تعالی(الفتاوی تنقیح الحامدیـه ج ۱ص ۱۰۳)

ژباړه:پوښـتنه وشوه دهغـه چاپـه هکلـه چې کومـک کـوي لـه مفسد،جاسـوس سره اوکوشـش کـونکی وي پـه خپرولودفسـادکې اودخلکوترمینځ شراچوي اوله خلکونه مال په زوروړي اوپـه زبردسـتی سره یـی ورنـه اخـلي اوعـاجزه خلـک وژني اوخلکوتـه پـه لاس اوژبـه ضرررسـوي.دابدکارونه نـه پریـږدي ترڅوپورې چې ونـه وژلـی شي نوددې سړي څه حکم دی ؟جواب کله چې دا بد عملونه کـوي اویوه ډله دمسلمانانویی په بدواعمالوګواهي ورکړي نوودې وژل شي اوقاتل ته به یی الله تعالی ثواب ورکړي ځکه چې نورمسـلمانان یـی لـه شرنـه خلاص شي.

(۷) په حدیث شریف کې دي نبی کـریم صـلی الله علیـه وسـلم فرمایي:

من انتهب نهبة فلیس منا (مشکوة شریف ص ۲۵۵)

ژباړه:چاچې ډاکـه وغورزولـه پـه ډاکـه غورزولـوسره نوهغـه لـه مونږنه ندی.ددې حدیث په تشریح کـې داحادیثوشارحینولیکلي دي چې کوم سړی ډاکه واچوي یایی چاباندې زبردستي وکړه اوله هغه نه یی مال واخیسته اویا یی غلاوکړه داټول صورتونه پـه دې حـدیث کې داخل دي.

(۸)نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمـایلي دي: **والمـؤمن مـن امنه الناس علی دمائهم واموالهم.**

ژباړه:مومن هغه دی چه له هغه نه خلک په امان کې وي پخپلو وینواومالونوباندې.

(۹) حدیث کې راځي نبی علیـه السلام فرمـایی: الالایحـل مـال امرئ الابطیب نفس منه(مشکوة شریف ص ۲۵۵) ژباړه:خبردارنه دی حـلال دیومسـلمان مـال لـیکن دهغـه دزړه پـه خوشـحالی سره روادی.ددې حدیث په شرحه کې کتابونو لیکلي دي چې چنـده کـول یواځې په هغه صورت کې جایزدی چې چنده ورکونکی یی دخپل زړه په خوشحالی سره ورکړي ځکه چې له دې حدیث نه مخکې داالفـاظ هم شته الالاتظلموا یعنې ظلم مه کوی ځینې خلک له دې وجې چنده ورکوي که زه چیرې چنـده ورنـه کـړم نوداځمونږرسوایي ده اوایـنده لپاره چنـده کـونکي مانـه پریـږدي یامـا وژني اویاضرراتـه رسوي نـو داسې چنده جایزنده دا نارواعمل دی .که چیرې مجاهدین پـه زورلـه خلکونه مالي مرسته وغواړي نو دا شرعا اوعرفاناروادده دګټې پـه ځـای نه جبرانیدونکی زیان لري .دغه کاردولس نفرت اوخوابدي رامنځتـه کوي .خو لله الحمدچیرته به داڅوک ثابته نه کړي چې مجاهدینو دې دا رنګه منحوس اعمـال کـړي وي بلکـه داکارونـه زیـاتره ځـایونو کې دمجاهدینو په نـوم نورخلـک کـوي بایـد چې مـونږ اوتاسـو دمجاهـد اوقطـاع الطریـق فـرق وپیژنـو او هیڅکلـه لـه قطـاع الطریـق نـه پـه مجاهدتعبیر ونه کړو.

# داسلامي امارت سره دروسي دروابطو افواهات

# او دلويديځ اصل اهداف

## شهيد زوی

دداعش پرضد داسلامي امارت سره دروسې دروابطوترعنوان لاندې دپيل شوې تبليغاتي لړۍ په ترڅ کې اوس ځنې غربي رسنۍ په مبالغې کولوکې دومره وړاندې ولاړې چې داسلامي امارت دزعيم اميرالمؤمنين ملا اخترمحمد منصور اودروسې د ولسمشرپوتين ترمنځ يې په تاجکستان کې دليدوکتوادعا هم وکړه.

هو!په ننوجنګونوکې چې ددښمن پرضد تبليغاتي ډګرګرم اوفعال ساتل خورازيات اهميت لري بايد داومنو چې ټول لويديځ اوخصوصاً امريکا دا اهميت ډېرښه درک کړی دجنګ له پيله يې دې ډګرته ډېره توجوکړيده ؛ دخپلواهدافودترلاسه کولو لپاره يې په تېروه۱۵کلونوکې له نړيوالورسنيو نه ډېرکاراخستی اوربښتيا داده چې په داسې سپين سترګی يې دارسنۍ استخدام کړې چې نړيوال يې پرې ټول بې اعتماده کړل ، حيثيت يې له منځه ولاړ اودبې طرفۍ اوازادۍ ټولې دعوې يې خلکو ته دخندا وړ خبرې وګرځېدې.

داسلام اومسلمانانوپرضد د صليبي تاړاکګرو له لورې داعلان شوې جګړې ړومبی ډګرچې جنګ ځپلی اوغريب افغانستان وګرځول شواودنړۍ ددې سترو ښکرورله لورې دمسلطې کړی شوې رواني جګړې موده تر۱۵ کلونو اوږده شوه نوداشغالګروپه پرتله افغانانوته دزياتو ځاني ، مالي اومعنوي تاوانونو وراوړېدل هغه طبعي حقيقت دی چې زموږ لپاره ترې انکارناشونی دی خوبهرنويرغلګرواوخصوصاً امريکاته چې کوم ځاني اومالي تاوانونه ورواوښتل هغه هم په خپل ذات کې دومره زيات اوستردي چې هيڅکله به يې هم دوئ هېرنکړي.

هغه جنګ چې امريکا يې په ۱۵ ورځوکې دګټلوتمه ښکاره کوله کابوتريوې نيمې لسيزې اوږد شو چې دادامريکا دجنګونو په تاريخ کې دجنګ ترټولو اوږده موده ده .

په دې اوږد جنګ کې چې امريکا اومتحدينوته يې له تصوراواټکلونونه وتلي ډېرزيات ځاني اومالي زيانونه وررواوړېدل ؛ حيثيت يې دخاوروسره خاورې شو؛اعتبارته يې لوی تاوان ورسېد؛ پرنړۍ قائم رعب يې له منځه ولاړ؛ په نړۍ کې لازيات بدنام شول خوچې په ټاکلو اهدافوکې يې هيڅ هم ترلاسه نکړل اونه يې دوئ ته دترلاسه کېدلوامېدونه پاتې شول نودفاعي حالت يې غوره کړاو اوس يې واک ته دطالبانودرسېدلواوداسلامي حاکميت دراتللو مخنيوي ته خپله ټوله توجو راواړوله.

امريکا اومتحدينو يې دجګړې په جريان کې هم دمختلفو لارو ډېرې هڅې وکړې چې داسلامي امارت مشران دجهاد نه لاس په سراودکابل ګوډاګۍ ادارې سره يوځای شي خو پدې هکله هم دسختې ناکامۍ سره مخامخ شول ؛ د سپيڅلي جهاد په ليکوکې عملي شريک مشران خوډېره لرې خبره ده داشغالګرو په زندانونوکې زنداني شويوهردلوړی اوټيټې پايې زنداني باندې دوئ په کلونو کلونوهڅې وکړې خوالحمدلله يومشرېې هم په لومو کې رانښکېل نه شواونه يې ددوئ غوښتنه ومنله

نودهرې لارې نه ناهيلي امريکا اومتحدينو يې اوس ټوله توجوداسلامي امارت بدنامولو؛ وربانديې د ولس اومسلمان ملت دبې باوره کولواود مجاهدينوپه صفوفوکې درزونو اچولوته را اړولې ده.

زمونږ دښمن داحقیقت درک کړیدی چې زمونږ دکامیابۍ راز زمونږپه وحدت اودواحدقائد ترقیادت لاندې په جهادجاري ساتلوکې مضمردی ؛ دښمن ته مودا هم معلومه شویده چې ترڅو مونږیوموټی یوکه داوسني صلیبي اتحاد نه هم څوچنده ستردښمن سره موترپېریوجنګ اوږد شي راباندې برلاسی کېدای نه شي نوځکه اوس مکاردښمن له نوروټولولاروخپله توجوراړولی ده اوخپل ټول وسایل یې د دطالبانوترمنځ خپلمنځي اختلافاتو اچولواوجهاد دصف ماتولوته ځانګړي کړيدي ؛ ددښمن رسنۍ پدې اړه ډېر پوچ تبلیغات کوي ؛ ډېرله دروغوډک راپوروڼه اوبې اساسه خبرونه خپروي ؛ کوچنوخبروته ډېره هوا ورکوي ؛جورنالستیک اصول ترپښولاندې کوي اوحقایق مسخ کوي .

داسلامي امارت له لورې دامیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهدرحمه الله تعالی دوفات داعلان اودخپل نوی امیر دټاکل کېدوپرمهال دغرب رسنیو داسلامي امارت پرضد څومره پوچ تبلیغات وکړل؟! ټول امارت په خپل نوي امیرمتفق اوراټول واو ایله ځلورپنځوتنانوپه بیعت کې تاخیرکړی و خوهمدا دځلورو پنځوتنانوتاخیریې په دوه برخو دامارت دویشل کېدلو اودطالبانو دوحدت په ماتېدلوتعبیراوه اوپه مسلسل ډول به یې ویل چې ګواکې دتل لپاره طالبان په دوه برخوویشل شول ؛یواځې پدې یې هم بسیا نه کوله بلکې دابه یې هم ویل چې په دوه برخوویشل شوی طالبان په خپلومنځونوکې ښکرپه ښکردي اودهېواد په مختلفوبرخو کې ددواړوډلوترمنځ جګړې رامنځته شویدي چې دواړو لوروته ګڼ ځاني تلفات هم اوښتي دي حال دا چې دهېواد په ګوټ ګوټ کې په ډېر جوش اوولولې دنوي امیرسره دبیعت کولولپاره جلسې جوړېدې اوپه لوړه اوټیټه کچه دامارت ټولومسئولینودامارت دنوي زعیم نه خپل اطاعت اعلاناوه.

همدارازچې کابومیاشت دمخه دزابل په شمالي سیمو کې داسلامي امارت دمجاهدینواوداعش ته منسوبو وسلوالو ترمنځ یوه ورځنۍ جګړه رامنځته شوه نومکاردښمن یوځل بیاخپلې رسنۍ داسلامي امارت پرضد دتبلیغاتي وسیلې په توګه وکارولې اوداجنګ یې دامارت دمجاهدینوترمنځ خپلمنځي شخړه وبلله او دجګړې دواړوخواوته یې دخورازیاتوځاني تلفاتود وراوښتلو دروغجن خبرونه خپاره کړل .

دښمن په ډېره لوړه پیمانه دطالبانو پرضد ټولې هغه فکري حربې استعمالوي چې له امله یې فکرونه منحرف او منظم صفونه ټوټه ـ ټوټه کېدای شي

ډېرې زیاتې هڅې یې وکړې چې مجاهدین پخپلو کې سره واچوي او دوئ ورته د سیالګرو په توګه پر لوړه غونډۍ کېني؛ پدې لارکې یې ډېرې زیاتې پیسې هم ولګولې ؛ خوله نېکه مرغه چې مجاهدینو تاریخي استقامت ښکاره کړ؛ د بې اتفاقۍ ، نفاق اوشقاق نه یې ځانونه وژغورل ؛ په ډېروسختوحالاتوکې یې خپل یووالی وساتلو؛ خپل صف یې ماتېدواوخپل وحدت یې ړنګېدوته پرېنښود؛ خپل جهادیې دواحدقیادت په اطاعت کې روان وساتلوامریکااوټوله صلیبي نړۍ یې پدې هڅو اوټولو شومو پلانونوکې ناکامه کړه ؛نوځکه یې دداخلي اوبهرني اشغالګردښمن په مقابل کې روان جهادي بهیر له یونه بل کال ته قوي کېد لو او صفونه یې لا زیات منظم اوغښتلي کیدل،چې په برکت یې دښمن پدې ډګرکې هم دسختې ماتې سره مخامخ اودزیاتې ناهیلۍ ښکارشو

داسلامي امارت پرضد ددښمن دهمدې بې اساسه تبلیغاتوپه لړکې اوس نړیوالو رسنیوداعش پرضد داسلامي امارت سره دروسې دروابطوترعنوان لاندې نوې موضوع ډېره زیاته ګرمه کړیده ؛ سره له دې چې موضوع تړاو داسلامي امارت سره دی او همدا اسلامي دموضوع یو اړخ دی خوبې له دې چې داسلامي امارت سره تماس ونیول شي اواصل حقایق معلوم کړی شي دې موضوع ته ډېره هوا ورکړه ؛ ګردي مېزونه پرې جوړ شول ؛ مقالې پرې خپرې شوې دشنونکو اوڅېړونکو شننې اوتبصرې رامخې ته شوې اودپیل شوې دې تبلیغاتي لړۍ په ترڅ کې اوس ځنې غربي رسنۍ په مبالغې کولوکې دومره وړاندې ولاړې چې داسلامي امارت دزعیم امیرالمؤمنین ملا اخترمحمد منصور اودروسې د ولسمشرپوټین ترمنځ یې دلیدوکتوادعا هم وکړه ؛ سنډې ټایمزنومې برتانوۍ ورځپاڼې په یو تازه خپور کړي راپورکې ادعا کړیده چې په

تېرسپتمبرمیاشــت کــې داســلامي امــارت دزعــیم اودروســې دولسمشرترمنځ په تاجکستان کې لیده کاته شویدي .

اســلامي امــارت چــې د۴۹ هېوادونونــه جــوړدنړۍ دتــاریخ دترټولوسترصلیبي اتحاد سره دتېرې یوې نیمې لسیزې راهیسې په جنګ اخته دی همدې اتحاد اوپه سرکې یې امریکاته داصل دښمن په نظرګوري اوورنه دخپل ملت اوهېواد ازادي اودلته دامن ، سولې اوعدل نه ډک واقعي اسلامي نظام قیام اوسوکاله اوباثباته افغانستان خپل اصل هدف ګڼي .

داسلامي امارت هرمشر اوکشرداهدف دومره عالي ګڼي چې خپل سرونه ترې جاروي ؛ددې هدف دترلاسه کولولپاره دخپل پیغام رسولواونړۍ دحقایقونه دخبرولوپه موخه په کوم نړیوال کانفرانس کې ګډون ،دکوم هېواد سره روابط ټینګول ؛چې اړین وګڼل شي دروابطوجوړولو لپاره ځنې هېوادونوته دخپلوافرادولېږدول ؛ دقیودواوشرطونولګولو پرته دچامرسته راجلبول اودېته ورته نوروټولو ګټورومشروعو لاروتعقیبول اسلامي امارت خپل حق ګڼي نوځکه پدې اړه نه دچا دمخالفت نه وېرېږي اونه دکوم ملامت کونکي دملامتیا پرواساتي ؛ که روسان دومره نران شي چې غربي اشغالګروته دتاوان رسولولپاره ډګرته راووځي اویا لږترلږه مجاهدینوته جنګي وسایلوورکولوته چمتوکېږي نو اسلامي امارت ددې اقدام هرکلی کوي اویوځل نه چې شل ځل هم ورسره ملاقات ته تیارېږي ؛خو روسانو چې پدې اړه څومره بې غیرتي ښکاره کړه هیڅا به هم دخپل دښمن په مقابل کې نه وي ښکاره کړي دروسانو پرضد دافغانانو جهاد دافغانانو خپل جهاد واودخپلوموخولپاره یې قربانۍ ورکولې خوپه دې جهادکې یې چې مرستې ګولې ښه په نره یې ترې اخستې اوخپل جهادیې دکامیابۍ ترمنزله رساوه ؛ امریکا چې افغانانوته دجنګي وسایلوورکولوته چمتوشوه نوافغانانوترې ښه په جرأت دا وسایل ترلاسه کړل اوښه په خلاص مټ یې دروسانواو کمونستانو پرضد وکارول اوس چې امریکااودناټوغړو غربي هېوادونو دستوني نه دسیمې دټولوزېرموتېرولودټولې سیمې دسرکشوهېوادونودټکولوپه موخه پرافغانستان یرغل وکړ ؛داهېوادیې اشغال اودروسانوپه شمول دسیمې ټولوهېوادونولپاره خوراستر خطر وګرځېد نواوس ددې ډېره اړتیا وه وخت وچې ددې سترپه مخنیوي کې یې برخه اخستی اودطالبانومادي مرستې یې کړې وای خونړۍ ولیدله چې روسیه پدې جنګ کې دامریکازیره خوره وګرځېده اودډالروپه مقابل کې یې دامریکا ملاتړوکړاو دمنځنۍ آسیا هېوادونوکې دامریکا اډوجوړولوته راځي شو.

دادروسانوکومه کامیابه پالیسي نه وه بلکې دمادیاتوحرص اودامریکاهاغه رعب اووېره وه کومې چې ټوله نړۍ پسې اخستی وه ؛ اصلاً روسانوهیڅ داګومان نه کولوچې ګینې داستره امریکا اوغونډه ناټوبه ګینې دغریبوافغانانوپه لاس شکست وخوري نوخپل خیریې دامریکاپه ملاتړکې لیدلو؛ که روسانولږترلږه خپلې وسلې بازارسیاه ته عرضه کړې وای دې به هم طالبانوته ډېره ګټه رسولی وای ځکه چې دامریکایانو پرضد کارېدونکې کابوټولې وسلې روسي ساخت دي کومې چې دتېرانقلاب نه راپاتې دي ؛ ددې وسلونرخونه اوس د۲۰۰۱ په پرتله کابویوپه لس چنده لوړشویدي ځکه چې نورې بازار ته نه راځي ؛ توربازارته دویستلوپه صورت کې روسانوله دې لارې ډېرې پیسې هم ترلاسه کولی شوې اوخپل دښمن ته یې تاوان هم رسولای شوې خو دامریکانه وېرې ؛ اسلام دښمنۍ اودافغانانونه دانتقام اخستلوخواهش له دې کارنه هم منع کړل نو ځکه اسلامي امارت دروسانوسره په رابطې کې هیڅ ګټه نه ویني ؛ دداعش یاکومې بلې ډلې پرضد اسلامي امارت دروسانو په شمول دهیچانه هم نه دمرستې حاصلول غواړي ؛ نه دچامرستې ته اړتیا لري .

همدا رازاسلامي امارت دخپل هېوادنه بهرددې ډلې یادبلې کومې ډلې پرضد دروسانوپه شمول دهیچا مرسته هم نه کوي او داځکه چې ددې ډلې پرضد داسلامي امارت اقدام دسخت ضرورت اومجبوریت پراساس دی؛ له دې املـه نـه چې ګینی ورته داصل دښمن په نظرګوري .

هرچاته معلومه ده چې په تېرو۱۴کلونوکې اسلامي امارت ،ټول ملت اودنړۍ دګوډ ګوډ نه راغلومجاهدینو ډېرې سترې قربانۍ ورکړې او ورکوي یې چې دهمدې سترو قربانیوپه برکت سترصلیبي اتحاد په ګونډوشو ؛ دې قربانیو ته اسلامي امارت خورادډېرقدرپه

نظرګوري داسترې قربانۍ هيڅکله هم نه هېروي ؛ په سر يې دهيچاسره سودا نه کوي ؛ ضايع کېدوته يې نه پرېږدي او نه چاته اجازه ورکوي چې داقربانۍ ضايع کړي.

اوس چې صليبي اتحاد په ګونډوشويدى پدې حساس وخت کې دجهاد په صف کې لړانتشارهم اسلامي امارت دځان اوټول عالم اسلام لپاره ډېر تاواني اوسترشرعي جرم بولي نو ځکه ورنه دځان ساتلو خپل ټول کوښښونه کوي .

داسلامي امارت مزاج داندى چې مسلمان ته داصل دښمن په نظر وګوري ؛ دمسلمان پرضد دتورې راپورته کولوشوق نه لري اونه هم مسلمان کشي خوښوي ؛ توره دډېرمجبوريت اواشدضرورت له مخې راپورته کوي اوچې راپورته يې کړي په ډېراحتياط يې بياچلوي .

اسلامي امارت ډېرې هڅې وکړې چې خبره دداعش سره وسله والې نښتې ته ونه رسېږي ځکه چې ددې ډلې لوړپوړي مشران که څه هم دپردوپه لوموکې راښکېل شويدي خوداچې عام جنګيالي او واړه مشران يې کم عمره غولول شوي جذباتي ځوانان دي نوځکه يې اسلامي امارت دپوهولوډېرې هڅې وکړې اوپه کومو درې ځلورولايتونوکې چې ددې ډلې جنګيالوشتون درلود ډېرو کوچنو خلکو اوړوګروپونه ته يې هم دامارت پرلوړرتبه چارواکو مشتمل وفدونه ورواستول شول؛ داوفدونه اودولايت په سطحه دقومي مشرانوجرګې به دداعش دې ګروپونو په ډېروسختواودغرورنه په ډکوالفاظوجوابولې خواسلامي امارت يې بيا هم دپوهولوکوښښونه کول ؛ له بده مرغه چې دوئ داکوښښونه داسلامي امارت په بزدلۍ ياد کړل ؛اسلامي امارت يې په پرله پسې توګه په ګوډاګيتوب تورناوه اوداسلامي امارت مجاهدين يې پرته له مرتدينو په بل هيڅ نوم نه يادول ؛ له عمل نه يې داسې ښکارېده چې دداعش سره له تړاو لرونکوپرته يې هيڅوک هم مسلمانان نه ګڼل نوځکه خو به يې دپيسولپاره خلک تښتول ؛ ددوئ مالونه به يې غنيمت ګڼل ؛ په يواوبل نوم به يې بې ګناه ولسي- وګړي وژل تردې چې خبره دعاموخلکودښځو دتښتولو، دوينځوپه څېرد استخداملو ،بې عفته کولواوبيا يې په ډېرې بې رحمۍ دوژلو ترحده ورسېده نودطالبانودقيام اوداسلامي امارت دتاسيس هدف چې ددغسې وحشتونواوظلمونونه خپل ملت ته نجات ورکول اوپه صحيح معنوکې داسلام دسپيڅلي نظام نفاذ و ،ددې هدف دترلاسه کولولپاره يې دکابودوه لسيزواوږده مبارزه اوپکې خوراسترې قربانۍ ټولې نړۍ ته معلومې دي ؛خپل دې مقدس هدف ته داسلامي امارت ژمنتيا هم له چاپټه نده ، روانه ستره مبارزه يې هم دهمدې لپاره ده او دژبنيزو، قومي ، لساني،سمتي اومذهبي توپيرونوپرته اسلامي امارت دداسې وحشت نه دخپل ټول ولس ساتنه خپل مسئوليت بولي اودامسئوليت به په کامل جرأت اداکوي.

ولس اومسلمان ملت دې مطمئن وي چې داسلامي امارت مجاهدين به دخپلو وينواوسرونوپه قربانۍ دشريعت اوشريعت ته دوفادارومسلمانانونه دفاع کوي په سخت حالت کې به هيڅکله ولس يواځې پرېنږدي اونه به چاته دشريعت دناسم تعبيراو تحريف اجازه ورکړي اونه به څوک دېته پرېږدي چې زموږپرولس خپل منحرف فکر مسلط کړي .

سره له دې چې اسلامي امارت دمجبوريت پر اساس ديادې ډلې پرضد په ښه جرأت اقدام کول اړين وبلل خو زموږ اصل اشغالګردښمن دې نه خوشالېږي اونه دې داخوبونهويني چې ګينې اسلامي امارت خپله توجوداصل دښمن نه و اړوله ؛الله الحمد چې سره دټولوهڅو داعش دومره لوى طاقت جوړ نه شو چې په ټول هېواد کې دمجاهدينوتوجو داصل دښمن نه واړوي ؛ دهېواد په ټولوولايتونوکې داسلامي امارت نفوذ دى يواځې ديوولايت په يوې څنډې کې داډله شتون لري چې داهم دتشويش وړخبره نده ؛ دې اتل ملت چې د۴۹ اشغالګرو هېوادونو په مقابل کې تر۱۵ کلونو جنګ جاري وساتلاى شو او دالله په فضل اومرسته يې دشکست سره مخامخ کړل نوداکوچنى تهديد هم له منځه وړاى شي ان شاءالله تعالى.

# دافغاني مفاخرو

## دوهم جلد کتاب چاپ شو

دافغانستان مفاخر

دهیواد نومیالي عالمان، غازیان، ادیبان، پوهان
اوهغه نومیالي میړمنې چې د تل لپاره یې نوم نه
د تاریخ په پاڼو کې خوندي دي

مورخین دتاریخ په اوږدوکې دټولني دارزښتونو ، اصالتونو او مفاخرو ساتونکي او یاپه بل عبارت هغو تـه یـوډول ژوند بښـونکي دي ،دغه ارزښتونه اومفاخر د نور و اقشارو اوطبقـو پـه نسبت دعلـماوو ، فقهاوو اوداسلامي پوهانو په وجود کې زیـات جلـوه دار اوځلنـده دي ، ځکه دهغوئ دژوند ، فکر ، عمل اووینا مصدر اوسرچینه دین ، شریعت اوفقهي استنباطات دي ، همدغه فقها او دیني اسلاف دي چې ددیني علومونو په اشاعت ، تدریس ، تصنیف او دحقي وینـادویلو او رسولو په مټ له دین اوشریعت څخه کلکه ساتنه اوبهترینه دفاع کوي ، ټولنه اوواکمن له ظلم ، مفاسدو څخه ، عـدل ، انصاف او غـوره اخلاقو ته سوقوي او هغه حقوق چې سپیڅلي شریعـت هرچاتـه ټـاکلي اوورکړي هغه په اسانه ژبه او ښکلي اسلوب خلکوته رسوي، نو لـه شـک پرته چې همدوی بیا امت او ټولني ته داسوه اوقدوه مقام او ځای لري اوددې وړ او حقدار دي چې خلک ورنه پیـروي اواطاعـت وکـړي . اوس که یوڅوک راپورته کیږي ، داسلام اوشریعـت ددغـو مشـالونو او درخشانه ستورو یاد ، کارنامي او خدمتونه د قلم په نـوک رانغـاړي او دتاریخ پاڼو ته یې سپاري ، نو دغه ستر ه اوتل پاتې هڅه به دیولسمي هجری پیړي دلوی مورخ ، محدث او داحنافو دسرخیل (الشیخ حسـن العجیمي) دهغې زریني وینا اورومرو مصداق ونه ګرځي چې وایي مـن ورخ أحدا من أهل الفضل والکمال فهو في شفاعته. ،؟ یعني هغه څـوک چې دفضل او اهل کمال خلکو ،یعني علماوو ، صلحاوو ، اولیـاوو اودالله تعالی دنیکو بندګانو تاریخ ولیکي اویاد یـې تـازه کـړي ، دغـه کـس دالله تعالی ددغونیکو بندګانو دشفاعت په دایره کـې رازي او پـه ورځ دحشر به دا مقرب بندګان دمورخ په حق کـې سـوال اوارزو کـوي چې یاالهه ته یې جنت داخل کړه . زمونږ ځـوان ، هڅانـد اودلـوړ دیني او اجتماعي احساس خاونـد عـالم، ښاغلی مولـوي محـمد ګـل سعید چې دخپلو افغاني اسلافو او نومیـالیو دژونـد او کارنـامو لیکلو ستر کار ته متي بډوهلي اوله خیرالقرون څخه یـې رانیـولي تـردې دمه یې د اسلافو ، محدثینو ، مشایخو ،علـماوو، غازیـانو او مجاهـدینو تاریخ لیکلو اونوی نسل ته دهغوی دورپیژندلو لړی پیل کړي، له شک پرته چې کار او هڅه یې ډیره قیمتي اوبې جوړې ده. ښاغلی مولف پـه دې توانیـدلی چـې دافغـاني مفـاخرو ترعنـوان لانـدې ، د۶۰۰ مخونو په زخامت دوه جلده شاه کـار کتابونـه چـې دوهـم جلـدیې تازه له چاپ څخه راوتلی وړاندې کړي . دافغاني مفـاخرو دکتـاب ځانګړتیا داده چې درانه مولف مبارک اسلاف په پښتومعیاري ژبه ، اسانه لیکدود اودلچسپه لهجه معـرفي اویـاد کـړي ، دجملـو لـه طوالت ، په مدح کې له افراط او له کمزورو حوالو او معلومـاتو څخه یې ځان ساتلی ، چې همدغه کمال یې دکتاب مقبولیـت او شـهرت ته زیات قوت وربښلی . که څه هم دلیکوال او مولف نور اثـار او په کتابي شکل قیمتي راټولوني هم شته لکـه (نهـج الملهـم في حـل المقدمـه وکتـاب الایمـان مـن الصـحیح لمسلم.اصول التفسیر رساله ده.چې هغـه دواړه دقـاضي محمـدامین صاحب ملفوظـات دي چـې ښاغلي مولوي صاحب دکتاب په بڼه لـیکلي اوچـاپ کـري دي عـربي کې .اصول الفقه، اصول البلاغـة، اصـول النحـو، اصـول الصرف، اصـول الحـدیث او اصـول المنطـق دادذي علوموهغـه جـامع ورقـي دي چـې لویولویومشایخوپري تقریظونه کړیدي او دیوبنـد مکتبـي چـاپ کـړي دغه راز یې ، اعدادالصرف د ارشادالصرف پشتوشرح ، جـمال قلـم دخطاطي فن کي جامع کتـاب دي چـې اووه قسمه خطونـه پکـې دي اوڅو ځله چاپ شوی، چې هریو په خپل ځای اومقام کې ارزښتمني هڅې اوغوره تالیفات دي خو دافغاني مفاخرو کتـاب اوتـالیف زړه وړونکی ځکه دی چې په دې طرز اوطریقه چې هـم دې مفـاخر او نومیالي تردیره بریده دیني مشاهیر وي ، بیا دې ژبـه اولیکـل هـم معیاري او په تول برابروي ، په هغه سربیره دې مراجع او سرچیني هم مستندي اوصرف په چاویلي نـه وي بنا اوهـم دې پـه ښکلي قطع اوصحافت چاپ شوي وي ، زماپه فکر دا یو بې ساری او دډیر تقدیر او تمجید وړ خدمت او له اسلافو سره دخلف درېښتني تعهد او وفاداری نښه په ډاګه کـوي . الله تعـالی دي ، قـدرمن مولـف ، مولوي مفتي محمدګل سعید صـاحب تـه ددغـو ټولو هڅـو نیکـي بدلي او عوضونه په دنیا اواخرت ورکړي او مونږ ته دې ددې توفیق راپه برخه کې چې دمولوی صاحب دکار او ستړیاوو قدرونه وکړو ، تشویق یې کړو ، اثار یې واخلو او خپل ورونو او اولادونه وهڅوو چې افغاني مفاخر دزړه په مینه ولولي اوځانونه دخپلو مشایخو، اسلافو او نومیالیو له قدر اوقیمت اګاه وګرځي.

مفتي محمد ګل سعيد

# ميلاد النبي

## يعني درسول کريم صلی الله عليه وسلم دسيرت بيان

لهـذا الشـهرفی الاسـلام فضـل
ومنقبـة تفـوق علـی الشـهور
ربيـع فـی ربيـع فـی ربيـع
ونورفـــوق نورفـــوق نـــور

ربيع الاول هغه له برکتونو ډکه مياشت ده چه په دې مبارکه مياشت کې دانسانيت محسن خاتم الانبياء حضرت محمدصلی الله عليه وسلم دنياته تشريف راوړی دی په دې وخت کې دګمراهی اوجهالت تياري دځمکې پر مخ خپرې وې خلکودخپل حقيقي خالق عبادت پريښی ؤاودبتانوعبادت يی کاوه .کفر،شرک،قتل ،غارت ،ظلم ،غلا،زنا اونورو ناروا کارونو کې خلک اخته ؤ،دخپلوبدواعمالو په وجه انسان دهلاکت دکندې په غاړه ؤ.اوانسان ته دانسان په سترګه نه کتل کيدل اونه له چاسره دانسان قدرؤ، هماغه ؤچې خوږپيغمبرصلی الله عليه وسلم دنياته تشريف راوړنويي خلکوته دانسانيت اوبشريت ټول حقوق په ډاګه کړل اوانسان ته يی دانسان قدروروپيژاند. مونږدپيغمبرصلی الله عليه وسلم په سيرت باندې بحث نه کووځکه چې دپيغمبرصلی الله عليه وسلم سيرت بيانول زيات اړخونه لري اوعلماؤ پرې لوی لوی کتابونه ليکلي دي اونه داديوځو ورځوکاردی بلکه په ډيره موده کې هم مکمل سيرت بيانول ناشونی دی زمونږغرض دادی چې دپيغمبرصلی الله عليه وسلم سيرت بيانول اودده په مبارک مولودباندې مجلس جوړل په شريعت کې څه حکم لري ؟داخبره دلمرپه څيرښکاره اوواضحه ده چې دخوږپيغمبرصلی الله عليه السلام سيرت مبارک بيانول په ديني لحاظ سره هروخت اوهره لحظه کې باعث دخيراوبرکت دی اوپه دنيوی لحاظ سره دحضورصلی الله عليه وسلم مناقب،کمالات،شمائل اوسيرت بيانول بې حده مفيداودانسانيت لوی خدمت دی.دانسان په زندګي کې داسې يووخت نشته چې هغه کې دې دنبي عليه السلام سيرت بيانول نارواومنع وي .حکيم الامت حضرت اشرف علی تهانوي رحمة الله عليه فرمايي:دوعظ لپاره مجلس منعقدکول اوپه کې دنبی عليه السلام سيرت بيانول بلانکيرجايزدی بلکه مستحب اوسنت عمل دی.ميلاديعني له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره دعقيدت اومحبت اظهارداعين ايمان دی.درسول الله صلی الله عليه وسلم له ولادته تروفاته پورې

دژوندتول اړخونه اودهغه دمبارک ژوند دواقعاتو، غزواتو اودژوند دحالاتو یادونه باعث درحمت خداوندي دی اودهرمسلمان دافریضه ده چه دهغه دزندګی حالات ځان ته معلوم کړي اودخپلې زندګی لپاره یی مشال وګرځوي.په دې کې شک نشته چه دمولودشریف په نوم مجلس په هغورواجي طریقوسره لکه ځینې خلک یی چه دائروي په شریعت کې هیڅ اساس نه لري .هغه رواجونه لکه دنبی کریم صلی الله علیه وسلم لپاره په مجلس کې ځای خالي پریښودل،دنبی کریم صلی الله علیه وسلم دنوم اخیستوسره ولاړه (قیام)کول،بې ضرورته راډونه اوچراغونه لګول ،جلوسونه ایستل او......

مولودشریف یعنې دسیرت النبی صلی الله علیه وسلم مجلس په دوه ډوله منعقدکیږي.یوهغه مولوددی چه له رسوماتواوررواجونوخالي وي داسې مولودلمانځل ددین دنشراواشاعت ذریعه دی اوهرهغه کارچه ددین دنشراواشاعت ذریعه وي هغه مندوب وي نودارنګه مولودمجلس منعقدکول هم مندوب دی.شیخ الحدیث مولاناحمدالله جان دډاګی دامت برکاتهم العالیه لیکلي دي:ان المیلادفردمن افرادنشرالعلم وکل فردمن افرادنشرالعلم مندوب فالمیلادمندوب(البصائرص ۲۰۲).بل هغه دمولود شریف مجلس منعقدکول دي چه په رسوماتو اوبدعاتو مشتمل وي دارنګه مولودپه شریعت کې هیڅ ثبوت اوجوازنه لري.یعنې ځینې خلکوپه دې مسئله کې افراط کړی دی اوځینونوروپه کې له تفریط نه کاراخیستی ،خوحق خبره داده چه نه په کې افراط کول په کاردي اونه په کې تفریط کول ښه دي.بلکه داسې بایدوویل شي چې په داسې طریقې سره مولودشریف مجلس جوړول چې هغه له رسوماتوخالي وي اومنکرات په کې نه وي ډیرښه کاردی اوباعث درحمت خداوندي دی اوکه له رسوماتواومنکراتونه ډک مجلس وي نودانارواده پسه شریعت کې هیڅ اساس نه لري دثواب په ځای په کې ګناه اوعذاب دی.

دنبي کریم صلی الله علیه وسلم سیرت ،ولادت باسعادت، حالات، اخلاق وکردار اودهغه دپاک ژوندیوبیواړخ بیانول اودهغو تذکره اواشاعت نه یواځې مندوب اومستحسن دی بلکه دادمسلمانانو اهمه فریضه اوباعث رحمت خداوندي دی ، اوهمدا دتبلیغ وتعلیم روح اودټولواسلامي تعلیماتوخلاصه اونچوړدی،اوپه همدې کې دمسلمانانوفلاح اوکامیابي ده،چې څومره هم ممکنه وي بایدچه دنبي صلی الله علیه وسلم دسیرت اشاعت اوداسوه حسنه تبلیغ وشي.ددې تبلیغ ښه لاره دمولود شریف مجلس منعقدکول دي په داسې طریقه باندې چې له رسوماتواورواجونوپاک وي پخپله پروردګارعالم دنبي علیه السلام دشریعت اودسنتودژوندي ساتلوخبرپه خپل دې قول (ورفعنالک ذکرک)سره ورکړی دی.البته ددې خبرې خیال ساتل په کاردي چې ددې بابرکته مجلس جوړولو لپاره ددولسم ورځ خاص کول په کارنه دی ځکه چې شریعت ددې ورځې تعین نه دی کړی.

دپښتونخوادسرحدایالت لوی متبحرعالم اوستر فقیه مرحوم شیخ الحدیث مولانا مفتي محمد فرید رحمة الله علیه په فتاوی فریدیه کې لیکلي دي:

سوال:نن صباخلک چې مولودشریف کوي اودادثواب کارګڼي اوپه دې کې فایده هم شته،تقریرونه په کې کیږي اودنبي علیه السلام په زندګي باندې رڼااچول کیږي نودې شرعاڅه حکم دی؟

جواب:مولودشریف که دتبلیغ اووعظ داجتماع نوم وي نوروادی اوکه دنبي علیه السلام دولادت بیانولونوم وي نوبیاخویولوی عبادت دی،لیکن عوارض خارجیه،اسراف اودحاضرروناظردعقیدې دخطرله وجې نه دمولودشریف موجوده رواجي مجلسونه منعقدکول منع دي.(فتاوی فریدیه ج۱ص۳۰۸)

پاتې شوه داخبره چه دامیاشت ولې ددې مجلسونو لپاره تعین شوې ده اوپه نورومیاشتوکې یی خلک ولې نه کوي ؟اوولې په ولادت باسعادت دنبي علیه السلام باندې خوشحالي کول کیږي اوپه وفات باندې یی غم اوخفګان نه کول کیږي ؟ددې ټولوخبرونه تحقیق اووضاحت علامه سیوطي رحمة الله علیه په الحاوي للفتاوی کې کړی دی چې ورسره یی دځینو معاندینو دشبهاتودفع هم ویلې ده .ددې لپاره چې څمونږ په دې لیکنه کې تطویل رانشي نومونږله هغوخبرونه تیریږو اوله اختصارنه کاراخلو.

شیخ محمدکامل بن مصطفی طرابلسي الحنفي په الفتاوی الکاملیه (ص۲۶۳)کې دمیلادشریف په هکله لیکلي دي:

ان قرائة المولدعلی الوجه المشروع ممدوحة شرعالاشتمالهاعلی تعظیمه صلی الله علیه وسلم واظهار علامات نبوته، وفی شرح العلقمي علی الجامع الصغیرفی الحدیث أن عمل الموادالشریف النبوي الصواب انه من البدع الحسنة المندوبة اذاخلاعن المنکرات شرعا،وقال علي القاري رحمه الله تعالی:وعمل المولدبقرائة القران والانشاد لمدائح النبویة واطعام الطعام والصدقات أمرحسن یثاب فاعله الثواب الجزیل بقصدالجمیل وان کان عمل المذکور لم ینقل عن السلف الصالح فی القرون الثلاثة الفاضلة وانماحدث بعدهافذالک بدعة حسنة عند من حقق العلم واتقنه ثم لازال أهل الاسلام فی سائرالاقطاروالمدن العظام یحتفلون فی مولده لی الله علیه وسلم نقله فی بهجة الفتاوی.

دڅبارې خلاصه:مولودشریف په داسې طریقه لمانځل چې له منکراتوخالي وي ښه کاردی ځکه چې دنبي علیه السلام په تعظیم مشتمل دی ملاعلي قاري ویلي دي چې میلادشریف په داسې طریقه لمانځل چې دقران کریم تلاوت اودنبی کریم صلی الله علیه وسلم مدحه په کې وشي اومسکینانوته خوراک ورکړای شي دابنه کاردی کونکي ته یي ثواب ورکول کیږي اګرکه داعمل له مخکینیوعلماوڅخه نه دی نقل شوی اوپه قرون ثلاثه وکې هم نه واووروسته را ایجاد شو خوبنه کار دی په نزددمحققینو عالمانو باندې او بیا مسلمانانوهمیشه داعمل کاوه په ټولواطرافواوښارونو.

مامدحت محمدا بمقالتي
ولکن مدحت مقالتي بمحمدا

# مفتي صاحب !

# په ایمان راته ووایه ....!

مولوي سلمان احمد صافی

دا جمله د مولانا بجلي ګر صیب ده ، بجلیګر صیب خو تعارف ته اړتیا نلري ځکه چې هغه زما تر تعارف ډېر اوچت دی . کیدای شی دا جمله به تاسو هم ځیني اوریدلي وي.

وایی چیري یوې هدیرې ته د جنازې لپاره تللی وم ، یو ملاامام دی د مړي له جسد سره اخوا دیخوا کیږي ، خاورو باندی دم و چپ کوي او خلکو ته وایی ، هلکه دایی خپو ته واچوئ ، هلکه دا یې سر ته واچوئ ، دا هلته واچوئ او دا هلته.

بجلیګر صایب وایی : زه غلی غوندی راغلم پټ مې ورته وویل : ملا صیب ! په ایمانی راته ووایه خدای به یې په دې وبخی چې دا ته کوم کار کوي ؟! وای ده راته ویل : غلی شه بجلیګره ! حاضري مې لګوله حاضري ..! ( ګویا د دې مړي خپلوانو ته مې ځان ښکاره کولو چې بیا یو څه راته راکړي. کنه غرض مې دا نه و چې په دې خپل دم و چُپ باندي دا مړی په خدای وبخښم).

د مولانا بجلیګر مرحوم دا خبره هغه مهال را یاده شوه چې په ټولنیزه رسنی فیسبوک کې مې یوه فتوی ولیدله او بیا مې ولوستله. په دې فتوی کې راغلي چې نن سبا په افغانستان کې شرعي امیر وجود نلري.

بیا مې همدا سرلیک په ځینو نورو آزادو خبري ویبپاڼو کې هم ترسترګو شو چې اکثرو یې همدا مهم ټکی ورته عنوان کړی وو . ماته عجیبه ځکه ښکاره شوه چې دا ډول فتواوي معمولاً علماء کرام په داسي مسائلو کې ورکوي چې د عامه مسلمانانو مصالح پکي خوندي کیږي ، نه داچې هغوی ته نقصان ورسوي . ځکه چې شریعت هیڅکله د مسلمانانو د خیرښیګني خلاف احکام نلري . هرڅه یې د مسلمان بلکي د ټول انسانیت پخیر دي.

خو په یاده سیاسي فتوا کې له ورایه څرګندیدله چې مسلمانانو ته د بې اتفاقی ، ګډوډۍ او انارشیزم بلنه ورکوي ، او دا هغه ټکی دی چې شارع علیه السلام همیشه مسلمانان له دا ډول فتنې څخه ویرولي او دا یې د دوی د تباهي ترټول غټ سبب بللی چې مسلمانان دې یو امیر ونلري او د ځنګله د ځناورو غوندي ژوند دي کوي.

**د یوې خبري وضاحت..**

مخکي تر دې چې د فتوا په اړه نوري خبري وکړو ، یو ټکی واضح کول غواړم ، هغه داچې پر دې فتوا چې کومو علماؤ دستخطونه کړی ، په دې کې دوې ډلې خلک دي : چې په خپلو کې هممفکره نه دي . یو څو کسه علماء پکښي

دي ؛ د هغوی په عقیده او نظر زه تر ډېره حده خبر یم هغوی رښتیا هم ډېر پاک زړي مسلمانان دي ، یقیناً چې دوی له قضیې نه سم خبر نه دي ، بلکې په ډېر ناوړه شکل پوهول شوي دي.

او په دې فتوا سره د هغوی غرض هرو مرو دا نه ؤ چې د فتوا له عنوانه ښکاري چې ګویا امیر او امارت نفي کړي، هرج و مرج ته اجازه ورکړي ، بلکې هغوی پخپل نیت کې مخلصان وو ، دوی نیت درلودی چې د خپلمنځي جګړې پېښه رامنځ ته نه شي . او غالباً همدغه خلک به وو چې وار له مخه لا دستخطونه تري اخیستل شوي ؤ . له فتوای سره نښلول شوي وو . دا بېله خبره ده چې دوی ولي په پټو سترګو دستخطونه کول ؟ اما نیت یی په هرصورت غلط نه وو.

مګر په دوی کې یو شمېر ملایان واقعاً فتنه ګر دي ، دسیسه جوړونکي دي ، هغه د چا خبره د اوباما تبر ته لاستي جوړوونکي ملایان دي . په دې عنوان چې ګویا موږ د مسلمانانو ترمنځ د جنګ جګړو او وینو تویولو مخه نیسو ؛ برعکس یې هڅه کړی چې مسلمانان په فتنه کبری کې واچوي ، ټولو مجاهدینو ته وایی چې امیرشرعي او امارت شرعي نشته ، هر سړی پوهـ سو او خپل کار یې . دا څومره غټ ظلم دی.

او دا هغه خلک وو چې په لومړي سر کې د اختلاف ګرو ملګري شول ، او د هغوی اختلاف ترلمر واضح وو چې له ملااخترمحمد منصور سره یې د قومي عصبیت او یا د نورو امتیازاتو غوښتنو ستونزه لرله . دغه ملایان چې په هغه دسیسه کې ناکام شول ، نو یې وویل چې دا خو هسی بدنام شوو ، چې د قوم ، پیسو ، امتیازاتو او قدرت پرسر مو ناکام اختلاف وکړ ، نو راځئ د دغو نورو پاک زړو علماؤ له اخلاص او سادګی نه هم ګټه پورته کړو ترڅو دا جوړ امارت ته خو یوه لغته ورکړو . مګر په دې کې هم رسوا کیدونکي دي . انشاء الله . نو زما په دې لیکنه کې خطاب یوازي همدغي وروستی ډلي ملایانو ته ده.

**په هر صورت...**

ملاصاحبانو پخپله فتوا کې ویلي ، چونکه د شرعي امیر لپاره ډېر شرایط دي او هغه شرایط د طالبانو په نوي امیر کې وجود نلري ، لهذا هغه شرعي امیر نه دی ، اطاعت یې لازم نه دی ، له ده څخه مخالف باغي نه بلل کیږي ، هرچا ته اجازه شته چې پخپل سر څه کولای شي ودي کړي ، او دا امیر حق نلري چې د فساد کوونکو مخه ونیسی ، ځکه چې دا نوی امیر پر هغو شرایطو برابر نه دی کوم چې اسلامي شریعت ورته وضع کړي دي . بیا یې د دې لپاره ډېرو کتابونو ته حوالي ورکړي.

**په دې اړه له ما سره څو پوښتني پیدا شوي...**

- الومړۍ پوښتنه دا ده چې د دغو مفتي صاحبانو دې ټکي ته نه دي پام شوي چې اسلامي شریعت خو د مفتي او قاضي لپاره هم کلک شرایط وضع کړي ، ان دا یی لا ویلي چې قاضي او مفتي به د غصي په وخت کې فیصله او فتوا نه کوي ، له چا سره چې یې شخصي عقده وي ؛ د هغه پر ضد به فتوا نه ورکوي یعنی که وریی کړي ؛ هغه فتوا یې قابل عمل نه ده ... نو آیا په دې ملاصاحبانو کې هغه شرایط ټول موجود دي چې شریعت ورته ټاکلي ، مفتي صاحبان دي خدای ته مخ کړي او پخپل ګریوان کې دې وګوري چې واقعاً دوی هیڅ ډول سیاسی ملحوظات نلري؟ هیڅ نوع

شخصي مخالفت نلري ، له نوي امير او امارت سره هيڅ عقده نلري ، دوی واقعاً د ټول مسلمان ولس خير په نظر کې نيولی او که د يوڅو معلومو کړيو په لارښوونه يې د څو اشخاصو د دفاع لپاره دا فتوی جوړه کړي ؟

که په تاسو کې هغه صفات نه وي ، (او ښکاره خبره ده دا به تاسو هم منئ چې نسته ) نو بيا د سياسي دښمنی پر آساس ليکل شويو څو پاڼو ته څنګه د شرعي فتوا رنګ ورکوئ ؟، او په ملااخترمحمد منصور کې بيا د راشده خلفاؤ صفات لټوئ؟

دا به هم درسره ومنو چې د اميرلپاره شرايط واقعاً ډېر او سخت دي ، نو تاسو ووايا ست چې تر دې مخکې مرحوم امير ، اميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد ، له ټولو هغو صفاتو برخمن وو چې تاسو په کتابونو کې لټولي او له منصورصاحبه يې غواړئ .؟

حال داچې د هغه مرحوم (اميرالمؤمنين رحمه الله) په قومانده خو تاسو د هلمند غفار اخندازاده ، د غزني قاري بابا ، د کندهار سرکاتب ، د هرات اسماعيل خان او داسی نور باغيان بلل ، او هغوی خو معلوم الحاله مسلمانان مجاهدين وو.

- ۲د دغو مولوي صاحبانو په فتوا کې راغلی چې ملا اختر محمدمنصور ځکه شرعي امير نه دی ، چې اهل الحل والعقد نه دی ټاکلی ، ولې چې اهل الحل والعقد په اوس وخت کې په مشکله موندل کيږي . نو دا مهم شرط چې نفی شو ، مشروط هم منتفي شو چې مشروعيت امير دی.

نو ملاصاحبانو ! آيا ملامحمدعمر مجاهد صحابه کرامو ټاکلی وو ، که د همدغي زماني خلکو ؟ که تاسی واياست چې هغه ته خو ۱۵۰۰ علماء را ټول شوی وو . دا سمه ده ، مګر هغوی خو د اميرالمؤمنين لقب ورکړ . تر دې مخکې خو همدغو څو تنو مجاهدينو دی امير وټاکه چې په قومنده يې عملاً جهاد شروع وو ،اوترد ي غونډي دوه کاله مخکې تحريک پيل شوی و اوتردي وخته په زرهاووکسان دمخالف لوري او طالبانو تلف شوي و او جهاد يې هم د فساد په مقابل کې وو، نه د سرو کافرانو په وړاندي . علماؤ خو فقط هغه لا پسی تائيد کړ. نو د هغه د امارت په وخت کې خو تاسو هم په جهادي خدمتونو لګيا واست . وظيفي او معاشات مو درلودل . ممکن اوس به يې هم منئ ځکه چې ستاسو خو يوه دعوا دا ده چې موږ د مرحوم ملامحمدعمر مجاهد په دفاع کې د ملااخترمحمد منصور مخالفت کوو.

- ۳ملاصاحبانو پخپله فتوا کې د امير د امارت د مشروعيت لپاره يو شرط دا بيان کړی چې قدرت او تسلط به لري ، چونکه ملااخترمحمد منصور قدرت او تسلط نلري ، لهذا امارت يې مشروع نه دی.

دا سمه ده چې د امير لپاره سلطه ضروري ده ، خو دې ته به فکر وکړو چې شرعي سلطه وايی څه ته ؟ هومره قدرت او تسلط چې ملامحمدعمرمجاهد په دا ۱۲کاله کې درلودی او د همغه تسلط په وجه د هغه مرحوم امارت مشروعيت درلود ، حکم يی نافذ وو ، جهاد يې ترقومانده لاندي صحي وو ، مسلح مخالف يې باغي بلل کيده ؛ نو اوسنی امير منصور صاحب ته خو همغه قدرت را انتقال شوی او تر هغه لا زيات شوی دی کم شوی خو بيخی نه دی.

مجاهدين چې په افغانستان کې مسلط دي ، په هرځای کې چې وغواړي ، د همدې نوي امير په حکم حتی حدودالله هم په محضر عام کې جاري کولای شي ، په ۳۴ولايتونو کې چې مسئولين لري ، قاضيان لري او نافذه قوه لري

، هغوی د ولس ټول معاملات د شریعت له مخې خلاصوي ، حکومت ته دومره نه ځي لکه څومره چې طالبانو ته راځي ، نو آیا دا شرعي تسلط نه بلل کیږي ؟ او که تاسو تسلط دا بولئ چې د کابل دارالآمان کې د پارلمان ودانۍ او د ارگ ماڼۍ باید له منصور صاحب سره وای ، بیا یې حکم نافذ ، او دی شرعي امیر و ؟ نو دا خو له ملاصاحب مرحوم سره هم نه وو ؟

-٤د ملاعبدالرؤف صاحب په یاده سیاسي فتوا کې راغلي چې په اوسني امیر کې د امارت شرایط پوره نه دي ، دا مورږ هم منو چې د راشده خلیفه شرایط پکې نشته چې بیا د خلیفة المسلمین لقب خپل کړي ، مگر د څوارلسمې پیړۍ د مسلمانانو د یو سواد اعظم لپاره هم ستا په نظر د امارت لیاقت نلري ؟

**امام قرطبي رحمه الله خو د مسلمانانو د امیر لپاره لاندي صفات آساسي او کافي بللي:**

-١مسلمان به وي -٢ نارینه به وي -٣ . بالغ به وي -٤ . عاقل به وي -٥ . د دین عالم به وي -٦ . عادل او صالح به وي -٧ .حُر (آزاد) به وي -٨ . صحتمند به وي -٩ . زړه ور او شجاع به وي -١٠.د حکومت په چارو او اسلامي سیاست به پوه وي.

اوس تاسو څه فکر کوئ چې دا صفات په اوسني امیر کې نشته ؟ که نشته هغه کوم صفات دي؟ ابوبکر صدیق رض په لمانځه کې رسول الله صلی الله علیه وسلم مخکې کړ ، لمونځ یې پسی وکړ ، صحابه وو یې هغه دلیل کافي وگاڼه او د رسول الله صلی الله علیه وسلم جانشین یې وټاکه ، که چیري یې په ژوند کې هغه خپل نائب هم ټاکلی وای او د ده په نیابت کې یې اوږده موده د مسلمانانو امور انجام کړي وای ، نو بیا به هم صحابه وو په هغه کې شک وو چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم خلیفه کیدلای نشي . ؟ مشر ملاصاحب خو په ټول تحریک کې همدغه سړی منتخب کړی و ، د ده تر وفات وروسته داسی خلکو پسی تائید کړ چې هغوی هم زمونږ او ستاسو په عصر کې که اهل الحل والعقد گڼل کیدل ؛ همدغه خلک به وي ، له دې پرته که هرڅوک راتللی بیا به هم ستاسو اعتراض حل شوی نه وای ، مگر چې آسماني فرشتې را نازلي شوي وای.

-٥په فتوا کې لیکل شوي چې په زور بیعت اخیستل سم کار نه دی د شریعت له نظره . گویا ملااخترمحمدمنصور له دې امله هم شرعي امیر نه دی چې چا ورسره بیعت نه دی کړی ، هغه چا چې کړی ؛ هغه منصور صاحب په زوره مجبوره کړي ، بیعت یې تري اخیستی دی . او یا اوس چې څوک مخالفت ته نه پریږدي مقصد یې له هغوی نه د بیعت اخیستل دي.

دا ډیره عجیبه خبره ده ، په دا څوارلس کاله کې حتی په دا شل کاله کې خو په ټوله دنیا کې هیڅ څوک هم په دې ونه وتوانیدل چې په طالب یوه خبره ومني ، نه چا په زور او نه چا په زر دې ته وهڅولای شوای چې ته کښینه یا ولاړ شه ، ته دا وکړه یا ها وکړه . نو منصور صاحب څومره تکړه شو او له ده سره کوم داسي جادو وو چې له بدخشانه تر هراته یې په ٥ورځي کې ټول طالبان دې ته مجبور کړل چې زما سره بیعت وکړئ ...!؟

که دا بیعت د ایمان او وجدان په تقاضا نه وي ، د امیرالمؤمنین ملامحمدعمرمجاهد د جوړ کړي کور د بقاء او ژوندي ساتلو په غرض نه وي ، له اسلام او مسلمانانو سره د وفادارۍ په آساس نه وي ، د یو ریښتیني اسلامي او ملي

احساس له مخي نه وي ، بلکي د پيسو په وجه وي او يا د زور له امله وي ، نو زر او زور خو بيا دواړه له دښمن امريکا سره شته ، هغه ولي نشي کولای طالب خپلي يوې ورې غوښتني ته مجبور کړي.

او يا داچې د مفتي صايب د فتوا په خيره ، هغه څوک چې مخالفت کوي ، له منصور سره بيعت نه کوي نو هغه (منصور) يې په مرګ ګواښي . زه فکر کوم چې دا هم يوه صريح افترا ده ، بيخي ډېرى خلک دي چې په کورونو کې ناست دي تراوسه چا نه ورته ويلي او نه به ترقيامته ورته ووايي چې تاسو له منصور سره بيعت ولي نه کوئ ، کنه نو مړه به مو کړو . هيڅ بېلګه يې نه ليدله شوي او نه به يې څوک وړاندي کړي.

**د يوه جماعة او يوه امير په اړه د اسلام ترکيز!...**

د اميرانو ، قومندانانو او ډلو تعدد نه شرعاً ، نه عقلاً او نه منطقاً جايز دى ، ځکه چې نقصان يې ډېر بديهي او د ټول مسلمان ملت په تاوان دى . په اسلام کې د يوه جماعة ، يوه امير او له هغه نه د اطاعت په اړه ډېر تاکيد شوى . لکه چې د اسلام دويم خليفه اميرالمؤمنين عمرابن الخطاب رضى الله تعالى عنه فرمايى:

«إِنَّهُ لَا إِسْلَامَ إِلَّا بِجَمَاعَةٍ ، وَلَا جَمَاعَةَ إِلَّا بِإِمَارَةٍ ، وَلَا إِمَارَةَ إِلَّا بِطَاعَةٍ . رواه الدارمي.

بيشکه چې اسلام له جماعة پرته نشته ، (يعنى اسلام برى نشى موندلى) او جماعة بې اميره نشى راتلى او امارت له اطاعة پرته نشي قائيميدلاى.

همدارنګه د يو معلوم الحاله اسلامي جماعة د امير په وړاندي مخالفت کول په داسى حال کې چې هيڅ نوع د شرعي مخالف عمل ځينى ليدل شوى نه وي ؛ خورا ناوړه او منکر عمل بلل شوى، امام طحاوي رح زموږ د احنافو ترټولو سترمحدث او فقيه عالم دى هغه داسي فرمايى:

» -وقال الامام أبو جعفر الطحاوي رحمه الله في شرح العقيده الطحاوية:

(ولا نرى الخروج على أئمتنا وولاة أمورنا وإن جاروا ولا ندعو عليهم ولا ننزع يدا من طاعتهم ونرى طاعتهم من طاعة الله عز وجل ما لم يأمروا بمعصية وندعو لهم بالصلاح والعافية).

-امام ابوجعفر الطحاوي رحمه الله وايى : موږ د خپلو امراؤو او اولى الأمرو سره مخالفت او د هغوى نافرماني نه کوو ، که څه هم ظلم کوي ، نه موږ هغوى ته بددعاء کوو ، او نه موږ د هغوى له اطاعته روګرداني کوو ، موږ د هغوى اطاعت په حقيقت کې د الله تعالى اطاعة ګڼو ترڅو چې يې موږ په معصية نه يو امر کړي او موږ هغوى ته د اصلاح او عافيت دوعاګاني کوو.

-په حجة الوداع کې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل:

»ولواستعمل عليكم عبد يقود كم كتاب الله، فاسمعوا له واطيعوا «رواه مسلم).

که يوغلام پرتاسې اميرشو او هغه دالله ج د کتاب د حکمونو سره سم پر تاسې حکومت کوي د هغه واورئ او اطاعت يې وکړئ

-بل حديث شريف دى » :من خرج من الطاعة وفارق الجماعة فمات ميتة جاهلية.«

او چاچې د مسلمانانو ډله پریښوده او د امیر له اطاعت کولو څخه ووتی او په دې حالت کې ورته مرګ راغی نو هغه پر جاهلیت ومړ. د ابن عمررض په روایت کې راغلي:

» -من خلع یدا من طاعة لقی الله یوم القیامة ولاحجة له ومن مات ولیس فی عنقه بیعة مات میتة جاهلیة«

او چاچې د امیر له اطاعت څخه لاس ونیو (یعنې دهغه اطاعت یې ونکړ) د قیامت په ورځ به هغه د الله تعالی په وړاندې راشي، چې د خلاصون لپاره به هیڅ ورسره نه وي . او کوم مسلمان چې له دنیا څخه په داسې حالت کې رخصت شي ، چې د امیر د بیعت له کړی څخه یې غاړه وزګاره وه، نو یقیناً چې هغه د جاهلیت په مرګ مړشو.

-په بل حدیث شریف کې دي چې : « من فارق الجماعة شِبراً فكانّما خلع ربقة الاسلام من عنقه » ترمذی)

یعنې څوک چې د جماعت (ډلي) څخه د یوې لویشت په اندازه هم بیرون شو د هغه حکم داسې دی لکه چې هغه د اسلام د اطاعت کړی له خپلې غاړې وایسته او په بل روایت کې دي: « دخل النار» اخرجه الحاكم).

-یعنې څوک چې د جماعت څخه بیرون شو، د هغه ځای جهنم دی.

-قال رسول صلی الله علیه وسلم « من اتاكم وامركم جمیع علی رجل واحد یرید ان یشق عصاكم اویفرق جماعتكم فاقتلوه » رواه مسلم ص ۱۲۸ج۲).

رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : که څوک تاسوته راغی په داسي حال کې چې تاسو پر یوه امیر سره متحد واست او دغه تن اراده درلوده چې ستاسو لکړه (اتحاد) مات کړي یا ستاسو په ډله اوجماعت کې تفرق او نفاق اچوي نو ویې وژنئ.

**شیطاني وسوسي!...**

نو کله چې دا هم معلومه شوه چې مسلمانان باید هرو مرو په یوه جماعة او ډله کې سره را غونډ شي ځکه چې له جماعة پرته اسلام نشته یعنی اسلام بری نشي موندلای ، او د هغي لپاره د امیر اشد ضرورت دی ځکه چې له امیره پرته جماعة نشي جوړیدلای ، او دا هم واضح شوه چې د امیر لپاره پورتني لس صفات چې امام قرطبې ذکر کړي ،شریعت کافي ګڼلي. نو بیا ولي یو څوک چې ځان ته واقعي مسلمان وایی ؛ د شیطاني وسوسو او حرامو دسیسو پیروي کوي ، پخپله خو یې اوړې د اسلام له دغه صریح حکم څخه سپکي کړي وي . لا نور هم کوشش کوي چې د نورو مسلمانانو په تفرق ښه زړه یخ کړي . او په داسی سختو شرایطو کې لکه نن چې د افغانستان مسلمانان او مجاهدین ورسره مخ دي ؛ پرځای د دې چې مرسته او لاس نیوی یې وکړي ، برعکس د کفارو او دوښمنانو پلانونه ورسره عملي کوي ...؟!

**د یادي فتوا هدف رښتیا همدا دی ؟...**

ښاغلي مولوی صاحبان د خپلي فتوا مقصد دا بیانوي چې ګویا د طالبانو ترمنځ د خپل منځي جګړو د خطر مخه نیسي. مګر د فتوا عنوان او محتوا یې بیا پر دې خبره را څرخي چې په افغانستان کې شرعي امیر نشته. چې امیر نشته نو هرڅوک کولای شي چې ځان ته امارت او قوماندانی اعلان کړي ، هغه که مادرسول وي ، که داعش وي ، که نیازی وي ، که ننګیالی وي او یا بل څوک ... نور دوی د هیڅ یوې قوماندي ماتحت نه دي ، نه د چا باغیان بلل کیږی، نه وربانديي کوم امیر شته.

نو که له دې فتوا نه په استفادې یو غل را پورته کیږي او ځان ته امارت او جهاد اعلانوي ، نو د هغه مخنیوی به بیا څوک کوي ؟ ځکه چې شرعي امیر خو وجود نلري، ستاسو په خبره، چې په قومنده یې څوک د هغه غله پرخلاف وجنګیږي اوپر هغه یې حکم نافذ شي!!؟ نو د هغې ستري خرابی مسئولیت به بیا د چا په غاړه وي؟ نو له دې نه واضح ښکاري چې د ملاصاحبانو له فتوا نه هدف اصلاحي نه ، بلکي سیاسي ، عنادي او مغرضانه دی.

**اخیري خبره...**

په دې کې هیڅ شک نشته چې د علماؤ داسی نصیحتونه چې هغه مجاهدین او عام مسلمانان له خپلمنځي اختلافاتو را ګرځوي ، او دوی وخت پر وخت د خپلو هدایاتو په رڼاکي د خپلمنځي فتنو مخه نیسي او همدا یې غرض وي ، دا رښتیا هم هغه عمل دی چې عین د قرآن او د پیغمبر په احادیثو باندي عمل دی ، پر دې که څوک اعتراض کوي ؛ په مسلماني کې به یې شک وي.

خو متاسفانه چې د یادې سیاسي فتوا څخه د اصلاح نه بلکي د فتنو را ولاړولو ، بدبختیو پیدا کولو ، او د ګډوډیو رامنځ ته کولو ، د مسلمانانو د صف د ماتولو او د دښمن سره د مرستي کولو، د تنظیمي وختونو د بیا را اعاده کولو او د مسلمانانو د وینو تویولو صاف بوی را ځي.

ملاصاحبانو! تردې به آسانه فتوا دا نه وای چې دغه د ګوتو په شمار څو کسانو باندي یې ږغ کړی وای چې یا خو له سواد اعظم سره ملګري شئ او یا له مقابلې او تخریبه لاس واخلئ ، که د منصور په امارت خوښ نه یاست نو ترهغه مهاله پر کور کښینئ ترڅو چې حالت له اضطراره را ووزي او د مجاهدینو دغه بریا ته رسیدونکې قافله تر یوه منزله ځان رسوي. بیا به هغه وخت تاسي خپلي مایوسی او اعتراضات د امارت او مجاهدینو په وړاندي کښیږدئ.

په اوس وخت کې ستاسو مخالفتونه د جهاد او مجاهدینو په سخت نقصان دي . آیا دغو مفتي صاحبانو داسي یوه فتوا نشوای ورکولای ؟؟؟ چې په دې سره به مو ظاهري دعوا ریښتیني ثابته شوي وای.

د دې څه اړتیا وه چې تاسو ویل شرعي امیر نشته لهذا خپل منځي جنګونه مه کوئ . آیا دا د سیاف فتواګانو ته ورته نه ده چې همیشه یې د باطنې خبث کاسه ډکه شي را ووزي په کابل کې د خبریالانو د مایکونو په مخکي فتوا صادره کړي چې د طالبانو جهاد او امارت شرعی نه دی ، لهذا افغان عسکر شهیدان دي ، او طالبان جهنمیان دي ؟؟؟

نو ملاصاحبانو! خدای مکړه که ستاسو په دغه کوچني فتوایی حرکت باندي د مسلمانانو دا صف د کافر او مرتد دښمن په وړاندي دړي وړي کیږي او مسلمانان له رسوایی سره مخ کیږي ؟ تاسو څه فکر کوئ چې تاسو به د الله تعالی په وړاندي د څومره ستري خطا ارتکاب کړی وي ؟!

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي : که څوک تاسو ته راغی په داسي حال کې چې تاسو پر یوه امیر سره متحد واست او دغه تن اراده درلوده چې ستاسو لکړه (اتحاد) مات کړي یا ستاسو په ډله اوجماعت کې تفرق او نفاق واچوي نو ویې وژنئ.

والی الله المشتکی وبه المستعان. اللهم لاتزغ قلوبنا بعد اذهدیتنا و هب لنا من لدنک رحمة انک أنت الوهاب

# د وحدت ملي حکومت

## په ګړنګونو سر دی !!

حقمل ضیاء

په کابل کې د جان کېري له لوري جوړ شوی نظام د خپل ډول له مخې د هیواد په تاریخ کې بې ساری دی؛ کله هم د هیواد په تاریخ کې داسې نه دي شوي او نه به و شي چې په ښکاره ډول د بهیرني اشغالګرو له لوري دي د یوه حکومت دوه مشران وټاکل شي، دوی به هره لانجه د یرغلګرو په مشوره هواروي، بې قیده او بې شرطه پرته له کتنې او ملاحظې به د هیواد د خرڅلاو ترون امضا کوي او ورته ډېرې نورې خبرې.

په حقیقت کې یرغلګر غواړي چې د مجاهدینو په وړاندې دې یو خنډ موجود وي اګر که هغه هر څوک وي، نو د همدې هدف لپاره یې د وحدت ملي د حکومت تر نامه لاندې پخواني جنګ سالاران، د شر او فساد ډلګی، د خلق او پرچم کمونستان او غربي دیموکراتان او سیکولران یې یکې را جمع کړل خو الله (جل جلاله) د دوی کید او مکر ناکامه کړ؛ نه قانوني حکومت را منځ ته شو، نه امنیت ښه شو، له ولس سره د حکومت فاصله ورځ تر بلې مخ په زیاتېدو ده، د بهرنیانو اډې محفوظې نه شوې، مجاهدین د کمزورۍ پر ځای ورځ تر بلې قوي کېږي مهم او ستراتیژیکې سیمې په پرله پسې ډول سقوط کوي او همدارنګه نور ډېر داسې بېلګې شته چې د وحدت ملي د حکومت ناکامي ښايي چې ځینې یې په لاندې ډول خلاصه کوو.

۱ : داخلي اختلافات : د وحدت ملي تر نامه لاندې د جوړ شوي حکومت تر ټولو لویه ستونزه داخلي اختلافات دي؛ لکه څنګه چې نظام د دوه وو اشخاصو ترمنځ مساوي وېشل شوی دی نو په همدې سبب هیڅ لوری په خپلو کارونو کې د دواړو د رضایت پرته په اسانی سره کومې پرې کړې ته نه رسېږي.

د وحدت ملي دواړه واکمنان یواځې په دې لګیا دي چې څنګه امتیازات په مساوي ډول ووېشي او خپله برخه څنګه پوره ترلاسه کړي دوی ته د خپلو ټیمونو د غړو رضایت او کتې تر لاسه کول تر هر څه ډېر مهم دي نه د ولس کتې او مفادات دوی کوښښ کوي چې د خپلو ټیمونو غړي خوشحاله وساتي ترڅو په آینده کې هم د دوی ملا وتړي.

همدارنګه له رهبری ښکته تر ټیټ رتبه او عادي کارکوونکو پورې د دواړو ټیمونو غړي له یو بل سره په سیالی کې دي نو کله چې یو نظام له سره نه تر پایه پورې په دوه برخو وېشل شوي وي نو دوی به څنګه ولس ته خدمت وکړي؟ څنګه به د ولس رضایت تر لاسه کړي؟ څنګه به قانوني حکومت منځ ته راوړي؟ کارونه به څنګه سره هم غږې کوي؟ او بل اخیره تر څو پورې به دغه حالت دوام کوي؟....

۲: نا امني : د هیواد په لر او بر کې ورځ تر بلې نا امنی مخ په ډېرېدو او پراخېدو دي په تیره بیا په هغو سیمو کې چې د ګوډاګی ادارې تر کنترول لاندې دي؛ په دغو سیمو کې د نا امنیو عاملین خپله همدا حکومتي چارواکي دي؛ دغو چارواکو په سیمو کې د خپل حاکمیت د دوام، ځمکو او جایدادونو د غصب، د پیسو د تر لاسه کولو او د خپلو شخصي تربګنیو د کتلو لپاره د بې باکو، قاتلانو، غلو او نشه یي ځوانانو ډلګی جوړ کړي دي؛ چې نه په دیني امورو او احکامو عقیده لري، نه د خدمت تفکر لري، خپله هم عزت او ابرو نه لري او د بل چا عزت ته هم نه ګوري دغو چارواکو د دې ډلو ټپلو د لاسه د خلکو ژوند تریخ کړی دی.

هغه سیمې چې په دې وروستیو کې د دښمنانو له منګلو ازاد او د مجاهدینو حاکمیت پکې ټینګ شوی دی خلک د مجاهدینو په راتګ او له دې ظالمې ادارې په ژغورل کېدو ډېره خوښي څرګندوي؛ ځکه چې د دغو حکومتي ځواکونو له لوري نه د دوی سر خوندي وو، نه مال، نه هم عزت او ابرو.

همدارنګه په هغو سیمو کې چې د دښمن پوستې او مراکز موجود دي ډېرې جګړې پکې کېږي چې مهم عاملین یې خپله همدغه عسکر دي؛ همدارنګه کله چې په کومه سیمه کې د مجاهدینو او ګوډاګیانو ترمنځ جګړه روانه وي دولتي ځواکونه په عمدي ډول د ولسي خلکو کورونه او جایدادونه په نښه کوي او د ړندو په شان هرې خوا ته هاوانونه وروي.

۳ : نا بشپړه کابینه : د وحدت ملي حکومت له تشکیله نږدې یو نیم کال تېرېږي خو لا تردې دمه په دې نه دی توانېدلی چې خپله کابینه بشپړه کړي؛ د دفاع وزارت، ملي امنیت او د نورو مهمو اورګانونو تر څنګ کڼ ولایتونه د سرپرستانو له لوري اداره کېږي، چې تر اوسه په دغو مقامونو د وړ کسانو د نه ټاکل کېدو مهم علت د دواړو حاکمانو د نظرونو اختلاف دی.

په دې وروستیو کې د کابل اداره له یوې نوې رسوایی سره هم مخ شوه د دوی ترمنځ نوي اختلافات وپارېدل چې امله یې د ملی امنیت ریس استعفا وکړ او پرځای یې نوی سرپرست وټاکل شو خو په هغه باندې هم لا تردې دمه کشالې او مخالفتونه روان دي.

د سرپرستانو له لوري د دومره اوږد وخت لپاره د دومره مهمو ادارو اداره کول د ولس او د کابل د ادارې ترمنځ سخت واټن را منځ ته کړی دی او د خلکو اعتبار او ملاتړ دوی په بشپړ ډول له لاسه ورکړی دي.

٤ : د بې کاری ستونزه : دا چې هر څه اپوته روان دي او د ښه حالت په لور د تګ څرک نه لیدل کېږي نو په همدې سبب د دې حالت تر ټولو زیات زیان د ولس خلکو ته اوښتی دی.

په هیواد کې د بې کاری ستونزه ورځ تربلې مخ په ډېرېدو ده او همدارنګه هیواد وال چې اقتصادي حالت یې له وړاندې ښه نه وو د مخ په زیاتېدونکو کړاونو سره مخ دي؛ له ولس سره د انتخاباتي ژمنو یوه وعده هم پوره نه شوه؛ دواړو سیالو کاندیدانو وعدې کړې وې چې دوی به امنیت راوړي، د ولس اقتصادي حالت به ښه کوي، کار به اهل کار ته سپاري، کاري زمینې به برابروي افغانستان به د نړی په تجارتي مرکز بدلوي او په هیواد کې به لوی لوی ټول کتې پروژې په کار اچوي خو دا چې دا هر څه یواځې د ولس د غولولو او تیر ایستلو لپاره وو نو په همدې سبب په عمل کې هیڅ شی ونه لیدل شو او بله دا چې د کابل اداره د دارنګه لویو خدمتونو وړتیا هم نه لري.

د کابل د ادارې له ناکامی پانګوال او شتمن دې ته مجبوره شوي دي چې له هیواده خپله پانګه وباسي او دلته

خپل کارخانې او پانګونه ودروي چې همدا پروژې د کاري زمینو د را منځ ته کولو لپاره ډېر زیات مهم کنل کېږي.

۵ : له هیواده تېښته : په دې وروستیو کې له هیواده کډ شمېر هیواد وال کډوال کېږي چې اوس محال افغانستان د نړۍ د هغو هیوادونو په ډله کې چې وګړي یې له هیواده کډوال کېږي له سوري وروسته دوهم مقام لري.

له هیواده د خلکو د تېښتې تند بهیر د وحدت ملي د حکومت تر را منځ ته کېدو وروسته پیل شوی دی، کله چې د وحدت ملي حکومت د خارجیانو په فرمایش جوړ شو د هیوادوالو امیدونه هم له خاورو سره خاورې شول نو په همدې سبب له هیواده کډوالۍ ته مجبوره شول؛ بله دا چې د وحدت ملي په حکومت کې یواځې هغو خلکو ته امتیازات او د حق ورکونې لومړي توب ورکول کېږي چې د دواړو حاکمو ټیمونو له یو ټیم سره تړاو ولري او خاموش اکثریت ولس له یاده ویستل شوی دی؛ همدارنګه هغه خلک هم د مجاهدینو له لوري د عدالت د تطبیق له وېرې له هیواده په تېښته دي چې د مجاهدینو په وړاندې یې جرمونه کړي دي، یرغلګرو سره یې مرستې کړي دي او د موجوده نظام په دوام باور نه لري.

۶ : د مالیاتو لوړول : دا چې د وحدت ملي حکومت په دې ونه توانېد چې د هیواد له کانونو کټه واخلي، لوی تول کټې پروژې په لاره واچوي، د پانګوالو پانګونې ته زمینه برابره کړي، د تېر په څېر له بهرنیانو مرستې راټول کړي او د خپلو عسکرو لپاره د مصارفو او تنخواوو لپاره په داخل کې منابع جوړ کړي نو په همدې سبب یې په هیوادوالو دمالیاتو په لوړولو پیل کړي دی.

لکه څنګه چې د هیوادوالو اقتصادي حالت ښه نه دی، د بې کارۍ ستونزه ورځ تر بلې پراخېږي، د اجناسو قیمتونه مخ په لوړېدو دی او ضروریات هم په ډېرېدو دي د کوډاکۍ اداري د مالیاتو د لوړولو وروستی پرېکړې به د هیوادوالو ستونځې نور هم زیات کړي او د غربت کچه به نور هم لوړه شي.

۷ : اداري فساد : په هیواد کې د امریکایي اشغال له دوی داسې اداره جوړه کړه چې په ټول کې له مفسدینو جوړه وه په دې سره د فساد داسې بنسټ کېښودل شو چې د دې نظام تر ژونده به دوام کوي.

د وحدت ملي د حکومت چارواکو وعده کړې وه چې که دوی کامیاب شي له هیواده به اداري فساد چې اوس محال افغانستان د نړۍ د فاسدو هیوادونو په سر کې قرار لري ختم کړي او هغه خلک به له حکومته لرې کړي چې په فساد کې ښکیل وي؛ خو په حکومت له حاکم کېدو وروسته نه چا اداري فساد ورک کړ، نه مفسد چارواکي له دندو لرې شول او نه هم د فساد منظمه لړۍ ودرېده بلکه فساد د پخوا په پرتله پراخ شوی دی، چارواکي په قاطع اکثریت په فساد کې ښکیل دی، مفسدینو ته لا زیات امتیازات ورکول کېږي او د ځمکو او جایدادونو غصب هم هغه شان روان دی.

دغه پورتني موارد مې د مثال په ډول ذکر کړل کنه نو نور ډېر داسې برخې شته چې د وحدت ملي حکومت یې په کړنګونو روان کړی دی او ولس ته بې شمېره ستونځې پیدا کړي دي.

## د امام غزالي (رح) کیسه

امام غزالي رحمه الله ډېر کم نفسه سړی و . یو وخت کې په یوه جومات کې اوسېده او د جومات خدمت به یې کاوه . خلکو نه پېژانده، چې دی امام غزالي رحمه الله دی . یوه ورځ په دغه جومات کې یو عالم طالب ته سبق ویلې . استاد وویل: قال غزالي « غزالي رحمه الله وایي« د امام غزالي سره وېره پیداشوه، چې خلک مې ونه پېژني؛ نو دا جومات یې پرېښود او بل ځای ته ولاړ. [غوره ویناوې « کتاب ۹۹ مخ].

"عابد"

# دشاګرد او استاد مواصفات

**لومړی : دبریالیتوب مواصفات:** -

دښو اخلاقو څښتن وي، ناسته ولاړه یې سنګینه، او له خبرو کولو دمخه پرې فکر کوي.

- دمور او پلار خدمت، دمشرانو او استاذانو احترام، دکورنۍ دغړو او ددرسي ملګرو سره مرسته او همکاري خپله دنده او مسؤلیت ګڼي.

- دویده کیدو په ځای کښې یې دورځنیو کارونو لپاره مهال ویش تنظیم کړی وي، یعنې دورځنیو درسونو دمراجعې لپاره، دلوبو او سپورت لپاره، دملګرو دلیدو لپاره، دخوب لپاره .....

- دلباس او خوراک اړوند امور یې منظم وي، لږ خوراک کوي، پاک کالي اغوندي، دورځې ډیره برخه په کارو او دشپې ډیره برخه په خوب تیروي، ځکه چې دکایناتو په نظام کښې ورځ دکار او شپه دخوب لپاره پیدا شوي ، ددې ترتیب رعایتول په کارونو کښې دبرکت لامل کیږي.

- دمهال ویش سره سم ورځني درسونه مراجعه کوي، دنوي درس لپاره اماده ګي نیسي، او ترڅنګ یې دوخت او ذوق په تناسب اضافي مطالعه کوي.

- دخپل وخت څخه اعظمي استفاده کوي، داسې چې دیوې ورځې څخه ددوه او درې ورځو کار اخلي، او دا ددې لپاره چې هر شاګرد په بالقوه توګه په راتلونکې کښې هر مقام ته درسیدو احتمال لري، چې بیا په خپل ضایع شوي وخت ډیر ارمان ورځي، نو بریالی شاګرد دغه وخت دخپل راتلونکي لپاره غنیمت بولي.

- په تعلیمي مرحله کښې دډیرو ویلو په ځای دډیرو لوستلو په هڅه کښې وي، دهرځل مطالعه یې دامتحان دمطالعې په توګه وي، دهرڅه دمیخانیک زده کولو پر ځای دهغې دفهم ترلاسه کولو کوښښ کوي.

- داستاذ په درسي حلقه کښې مهمې علمي نکتې نوټ کوي، او دخپلو یاداښتونو په کتابچه کښې یې دراتلونکي لپاره تنظیموي، په درسي حلقه کښې دځان دپوهیدو نهایي کوښښ کوي، داستاذانو سره په معقوله توګه مفاهمه او مناقشه کوي.

- داستاذ څخه په هره خبره کښې دلیل نه غواړي، په درسي حلقه کښې داخلال او بیځایه تشبث څخه ځان ساتي، استاذ ته په درسي حلقه کښې په ټولو حواسو سره مستحضر ناست وي؛ ځکه چې علم او پوهه په اصل کښې داستاذ دخولې څخه انتقالیږي نه دشخصي مطالعې څخه.

- دمطالعې پرمهال مغلق، غامض او حل طلب ځایونه په نښه کوي، او بیا یې داستاذانو او یا هم پوه ملګرو سره مناقشه کوي.

- دښه خط کولو وخت نا وخت مشق کوي، دنویو وسایلو داستعمال دطریقو او ورنه داستفادې دلارو چارو دزده کولو اړوند حریص وي.

- دسپورت او لوبو لپاره منظم وخت لري، او دبدني ریاضت سره مینه لري، ځکه چې بدني ریاضت په عبادت او تعلیمي هڅو کښې نشاط راولي، او دفکر دغزونې او په کښې دنوښت او ابتکار دسلیقې روزلو لامل کیږي.

- بریالی شاګرد تل هڅه کوي چې : دتعلیم په ډګر کښې مخکښ، دستیج پر سر خپلو ملګرو ته ښه خطیب او ویناوال، ملګرو ته ددرسي طرحې او پلان په وخت کښې ښه طراح، او دلوبې او مسابقې پر مهال ښه لوبغاړی وي.

### دوهم : ستونزې او حل لارې:

دمکتب او مدرسې دطالب په ستونزو غږیدل -بیا په ځانګړي توګه دافغانستان په داخل کښې- ممکن دڅو خواوو څخه وي چې په لاندې توګه یی بحث کوو:

### تولنیزې او سیاسي ستونزې:

هغه څه چې افغان طالب او زده کوونکی یې له بل هر څه زیات اغیزمن کړی هغه دافغان زده کوونکی او طالب ټولنیزې او په ټولنه کښې دمسلط سیاسي چاپیریال ستونزې دي؛ لکه ټولنیز فقر، بې نظمي، دعامه پوهاوي نشتوالی، سیاسي نامتوازن چاپیریال، دهیواد په کچه دپوهې او علم دارزښت نشتوالی، جګړه او دامنیت اړوند ناباوري.

دا او دیته ورته بلا ډیرې ستونزې هغه څه دي چې افغان طالب یې دخپل مستقبل په اړه دروانې، فکري، او فزیکي په دریواړو لحاظونو ګواښلی.

ځکه کله چې په یوه ټولنه کښې دفقر ترڅنګ عامه نظم او سیاسي ساختار مختل وي؛ نو طبیعي خبره ده هلته دیو شاګرد بدن او دماغ یو بل سره دغښتلي او فعال تعامل څخه لویږي. تقریبا (٢٤) کلونه پخوا دمدینې منورې داسلامي پوهنتون په نوښت په پیښور کښې په یوه تدریبي دوره کښې ما ګډون درلود، زمونږ دتفسیر یو سعودی استاذ وو چې غالبا مسعد الحسیني نومیده، یوه ورځ یې په ډیر تآسف مونږ ته وویل: دمدینې منورې په پوهنتون کښې دنړۍ دوتلو محصلینو تر منځ افغانان هم دسیالی جوګه دي، خو له بده مرغه دټولنې دناسمو شرایطو اغیز یې په محصلینو کښې جوت څرګندیږي. ددې ستونزې اساسي عامل ددې هیواد په چارواکو کښې ددې ملت په وړاندې داجتماعي فکر نشتوالی دی، ګوری ! دروسانو سره دجهاد په دوره کښې افغان ولس دخپلو مشرانو ښه میړنی ننګه وکړه، او دالله تعالی په مرسته یې پوره نیمه نړۍ کمیونزم ورته راچپه کړ، ولې دملت په اړه له اجتماعي فکر څخه محروم جهادي مشرانو په شخصي او لنډ مهاله غوښتنو اصرار دادی زمونږ ددې ټولو بدبختیو لامل دي چې تر ټولو زیات پکښې زمونږ ځوان او زده کړی نسل سوځیږي.

### دتعلیمي سیستم او اداري ستونزې:

**الف:** دنصاب ستونزه: تعلیمي پروسه خپله څلور بنیادي عناصر لري؛ معیاري او متوازن نصاب، وړ تعلیمي ماحول او اړین تعلیمي وسایل، مسلکي او متخصص استاذ، ښه او فعال مدیریت. نصاب یو له دغو مهمو عناصرو څخه ګڼل کیږي؛ ځکه چې هرعصر خپله ژبه او تعبیر لري، چې دوخت په بد لیدو تعبیرونه هم بدلیږي، پدې معنی چې مستویات بدلون مومي او عموما شاته را درومي، که مونږ دنن نه تقریبا دیرش کلونه مخکښې ولاړ شو، او دهغه وخت خپل درسي ملګري دنن مهال په هماغه مستوی دیوې مدرسې دشاګردانو سره مقایسه کړو جوت پوهیږو چې څونې توپیر موجود دی، خو بیا هم زمونږ په ځینو مدارسو او تعلیمی ادارو کښې هماغه نصاب، په هماغه زماني مقطع کښې تطبقیږي، چې ماته

اوسنی نسل -خصوصا- دفنونو په برخه کښې دهغې دهضمولو څخه عاجز ښکاري. زما په نظر هغه مدارس چې دغه نصاب تطبیقوي دوه کارونه ورته اړین دیک یو دا چې ددغه نصاب طالب باید کم له کمه ابتدایه تعلیمي مرحله تیره کړیوي.

بل دا چې په تدریجي بڼه دمستعدو استاذانو له خوا نوموړی نصاب د (اصالت او معاصرت) په بنیاد په نوې بڼه تهیه او ترتیب شي. ددې ګټه داده چې له مخې به شاګرد ته دپخوا په څیر قوي خلفیه ور انتقالوي، او معاصرت په رڼا کښې به دطالب دژر پوهیدا لامل کيږي.

ب: دتطبیقي اړخ نشتوالی: زمونږ دشاګردانو او په ځانګړې توګه ددیني مدرسو دطالبانو بله ترټولو ستره ستونزه داده چې استاذان یې دفنونو دتدریس پرمهال دتطبیق خوا ته نه ورولي، ګوری! مونږ چې دا فنون وایو ددې هدف او غرض لپاره یې وایو چې په نهایة المطاف کښې دقرآنکریم او نبوي حدیثونو سم فهم ته که ونه رسیږو؛ نو اقلا خو ورنږدې شو. مثلا دنحو، صرف او بلاغت دعلومو دویلو هدف او غایه داده چې دعربي ژبې داسالیبو سره دبلدتیا وروسته په فصیحه عربي ژبه راغلي قرآن او نبوي حدیثونو کښې دبیان شویو احکامو طبیعت او دهغې مراتب وپیژنو، او هم یې دلوستلو پرمهال دصحیح تلفظ او سم فهم وړتیا پیدا کړو.

داصول فقه علم ددې لپاره زمونږ اسلافو په تعلیمي نصاب کښې ځای کړی چې په مټ یې دقرآن کریم او نبوي حدیثونو څخه دحکمو او فوائدو دراویستلو دطریقې سره اشنا شوو، څو دژوند په لارو چارو کښې لارښوونه ځینې واخلو، او هم په قرآني نصوصو او نبوي حدیثونو کښې دبیلګې په توګه ظاهر، نص، مفسر، محکم، صریح، کنایه او ....... بیلابیلو اقسامو ترمنځ تمییز او تفکیک وکړای شو. دمنطق او حکمت علم مونږ ته لدې نوره څه ګټه لري چې دخپلو مخالفینو سره دقرآن کریم داستدلال طرز او فلسفه زده کړو، او هم دمناقشې او مباحثې پرمهال ددلایلو دپرځای استعمال او استخدام مواقع او مقامات درک کړای شو. خو له بده مرغه - ملګرو رابانديي غصه نه شی- زمونږ په مدارسو کښې ډیر برجسته او پیاوړي استاذان دخپلو شاګردانو دغه اړخ ته ډیره پاملرنه نه کوي. ددغه اړخ دنادیده نیولو تاوان دادی چې زمونږ یوه برخه شاګردان البته ټول نه، دټاکلي نصاب دویلو څخه فارغ شي، په نحو کښې -مثلا- دنحومیر څخه تر شرح جامي پورې یې دټولو دقیقو نکاتو او حاشیو په شمول خپل ذهن ته نقل کړې وي، ولې تر عمره پورې دهغه په ذهن کښې دفاعل تصور د (زید)، دمفعول تصور د (عمرو) او دحال تصور د(راکبا) پورې محصور وي، دیته ورته یې نور اعرابي حالتونه درواخله.

زه وایم دابهترین نصاب دی چې دنحو په اړه کلي قواعد په لنډه توګه طالب ته انتقالوي، پدې شرط چې استاذ لږ زحمت په ځان ومني، یوه ښه کتابچه ځان ته واخلي، او شاګرد ته دورځني درس په اړه دمبتدا، یا خبر، یا فاعل او .... اړوند قواعد دنحومیر، یا هدایة النحو، یا کافیه (هر کتاب چې استاذ یې په پدغه کال تدریسوي) څخه ووایي، او تطبیق لپاره یې څو مثالونه دقرآن کریم آیاتونه یا نبوي حدیثونه راوړي، چې استاذ به دمخه په خپله کتابچه کښې لیکلي وي، ددې ګټه به داوي چې هم به یې طالب دنحو په هدف پوه کړی وي، او هم به یې دکال په پای کښې دراټلونکو شاکردانو لپاره تطبیقي نحو میر، تطبیقي هدایة النحو، تطبیقي کافیه ترتیب کړیوي، همدغه په نصاب کښې داصالت او معاصرت بنیاد تشکیلوي. همدیته ورته داصول فقه فن درواخله مونږ په اصولو کښې داصول الشاشي څخه تر مسلم الثبوت پورې ډیر قوي نصاب لرو خو که بیا له یو شاګرد څخه پوښتنه کوی چې ظاهر او نص راته په قرآن کریم کښې تطبیق کړه، نو فقط همدغه یو آیت یې زده وي چې ( فانکحوا ما طاب لکم من النساء ....). دلته یوه جالبه خاطره راپه زړه

شوه زما يو ملگری دی ددکتورا په مرحله کښې زما همصنفي و، اوس په کابل پوهنتون کښې استاذ دی، ښه عالم شخصيت دی، ماته يې يو ورځې خپله خاطره بيانوله ويل يې : ما دفقه او اصولو سره زښته زياته علاقه درلوده، خو تر پايه مې په قرآن کريم دهغو محدودو آياتونه څخه پرته (نص) تطبيق نه کړای شو، نو تصميم مې ونيولو چې عربي علومو ته مخه کړم، ما ورته خندل چې زه عربي له پدې نيت راغلی يم چې په اصول فقه پوه شم؛ ځکه داصولو ډيری قواعد په لغوي بنيادونو ولاړ دي، او ته له اصول فقه څخه عربي ته راتښتيدلی يې.

همدا راز ماته داعملي نه ښکاري چې زمونږ استاذ دې د (سلم) طالبانو ته خپل ټول قوت په (سبحانه ما اعظم شانه) کښې مصرف کړي، او په پای کښې دې زمونږ طالب دسلم دويلو په غرض او غايه سر نه وي خلاص. زما هدف دادی چې زمونږ استاذان بايد دشاګردانو دغه ستونزه په پام کښې ونيسي، او دفنونو دتدريس پرمهال يې بايد ځان سره دتطبيق خواته بوزي.

او پدې اړه دې څوک دا نه وايې چې دا خو زمونږ دپخوانيو علماوو نصاب دی، او ځانونه په هغوي قياس کوي، نه !! دا غلطه ده ، بلکې پدې اړه دهغوي اتباع پکار ده، او هغه داسې چې هغوي په ذاتي محنت او کوشش دا نصاب دتطبيق وسيله ګرځولې وه، نه غايه. دمثال په توګه تاسو خو په مقامات دمولانا ادريس کاندهلوي -رحمه الله- حاشيه وګوری، بيا درته خپله دهغه په عربي علومو کښې تبحر او وسيعه مطالعه معلوميږي، نادرې لغوي نکتې بيانوي، په بې شميره قرآني آياتونو استشهاد کوي. يا دمولانا عبد الحي لکنوي -رحمه الله- تاليفات وګوری، دبيلګې په توګه په علوم حديث کښې دهغه يوه وړه رساله ده، د الرفع والتکميل په نامه، نږدې له يونيم سل مصادرو څخه يې پکښې استفاده کړيده، داسې نور علما درواخله. څوک دا نشي ويلی چې دغو علماو دې په دغه محدود نصاب اکتفا کړيوي. بل دا چې زمونږ دشاګردانو لپاره هغه سويه، هغه محيط، او هغه چاپيريال اوس چيرې پاتې دی؛ نو پکار ده چې استاذان دخپلو اوسنيو شاګردانو سره پدې مورد کښې زحمت وباسي.

### ج : دعلمي سياليو او بحثونو نشتوالی:

زمونږ دشاګردانو بله ستونزه چې داداري سره تړاو لري داده چې زمونږ اکثره مدارس دشاګردانو تر منځ دعلمي سياليو او بحثونو دايرولو خواته بيخي پاملرنه، نه کوي، چې دنه شتون له امله يې زمونږ اکثره فارغان جامد او غير متحرک وي،. دعلمي سياليو او بحثونو دايرول دشاګردانو په فکري روزنه کښې دملا دتير حيثيت لري، دعلم داهدافو سره يې اشنايي پيدا کوي، دهغه داخلي جوهر صيقل کيږي، بالقوه استعداد يې په بالفعل بدليږي. په ګانده کښې په ټولنه کښې ديو واقعي لاربښود، قايد او ژوندي معلم کردار لوبولی شي. امام بخاري -رحمه الله- په کتاب العلم کښې درسول الله -صلی الله عليه وسلم- دعلمي حلقې په ميتود او طريقه يو باب ايښی (باب طرح الإمام المسألة علی أصحابه ليختبر ما عندهم من العلم) چې دا مونږ ته را په ګوته کوي، چې کله ناکله دشاګردانو ترمنځ سيالی ترتيبول ځکه لازم دي چې يو بل ته يې علمي ذوق او علمي مقام ورمعلوم شي. ديته ورته بله ستونزه دليکوالی دفن سره زمونږ دشاګردانو نا اشنايي ده، له بده مرغه ډيری مدارس پدې اړه بيخي بې تفاوته دي.

مونږ دميډيا په عصر کښې اوسيږو چې په ټولنه کښې ديو فعال قوت په توګه په عامه اذهانو سيطره او واک لري، او هر لورې ته دهغوي دسوق کولو توان او ظرفيت لري. دمدارسو هدف په ټولنه کښې دفکري پلوه دقدوه کدرونو روزنه ده، چې ټولنه به رهبري کوي، عوامو ته به دژوند په هر اړخ کښې لارښونه کوي،

دبيګانه وو دفکري يرغل په وړاندې به لکه دسپر دريږي. ولې زمونږ مدارس دې ډګر ته يا ندي متوجې شوي او يا ورته بيخي مهم نه بريښي. دشاګردانو داستونزه په ډيره اسانه توګه مهاريدی شي، که چيرې کومه مدرسه داخبار يا مجلې دچلولو امکانات نه لري، اقلا دوه دوه درې ورزيده استاذان دي مکلف کړي، چې دشاګردانو لپاره ديوالي جريدې ايجاد کړي، او دبيلابيلو مستوياتو او ټولګيو شاګردان ديته وهڅوي چې دغو جريدو ته خپلې ليکنې دنشر لپاره وروړي.

دا کار دشاګردانو په فکري روزنه کښې خورا عمده رول لري، په شاګرد کښې فکري وسعت او بصيرت پيدا کيږي، او هم په راتلونکي کښې دخپلې ټولنې په درد خوري.

### د: په تعامل او رويه کښې تشدد:

له بده مرغه په ځينو مدارسو او تعليمي ادارو کښې يو ډول تشدد لا اوس هم حاکم دی چې کله شاګرد آن له درس څخه زړه تورن کړي، دشاګردانو وهل، په يوه ځانګړې او مخصوصه طريقه په درسي حلقه کښې دشاګردانو جبرا کښينول، دنورو شاګردانو په منځ کښې ديو شاګرد توهينول، دا او ديته ورته په رويه او تعامل کښې تشدد او سختي دافغاني شاګردانو هغه ستونزه ده چې په هيڅ توګه دشاګرد دمستقبل لپاره ښه پيغام نه لري. اداره بايد استاذان پدې واداره کړي چې دخپلو شاګردانو سره په رويه او سلوک کښې له نرمی کار اخلي، ددې ښه مثال ديو معلم او مشر په توګه درسول الله -صلى الله عليه وسلم- هغه تعامل او رويه ده چې دهغه -صلى الله عليه وسلم-داوږدې مودې خادم او شاګرد انس -رضى الله عنه- مونږ ته رانقل کړی. دشاګرد سره ترلې ستونزې :

### الف: اهمال او بې رغبتي:

ځينې شاګردان مونږ وينو چې دخپلو ورځنيو درسونو او تعليمي دندې اړوند مهملانه او بې رغبته چلند کوي، له درسونو څخه پټيږي، غير حاضري کوي، او که کله حاضر هم وي؛ نو په ذهني لحاظ مستحضر نه وي، دورځنيو درسونو مراجعه نه کوي، که پوښتنه ځينې کوی ځواب نه وايي، په صنفي فعاليتونو کښې دشوق له مخې برخه نه اخلي، چې ددې ټولو جرړه او اساس بې رغبتي او اهمال ګڼل کيږي، چې دا يوه ستونزه ده او زمونږ په تعليمی ادارو کښې شتون لري، چې تر شاه يې ډير عوامل ممکن وجود ولري، او اداره او استاذ يې بايد په ګډه ددرک کولو او له منځه وړلو هڅه وکړي، چې ددغې ستونزې ممکنه عوامل په لاندې توګه ځيږو: کله کله ددرسونو سره ديو شاګرد بې رغبتي دکورنی محيط له امله وي؛ يعنې کورني نا مساعد حالات ديو شاګرد دبې رغبتی لامل شوی وي. کله کله ديو استاذ ناسمه رويه ديو شاګرد داهمال او بې رغبتی لامل کيږي. کله په ټولګي او صنف کښې دملګرو له خوا يو شاګرد دفشار لاندې راځي او دهغه دبې رغبتی لامل کيږي.

کله کله په يو مضمون کښې ديو شاګرد نه پوهيدل ددې سبب کيږي چې هغه دنورو درسونو اړوند هم داهمال خوا نيسي. کله کله يو استاذ په صنف کښې دلوړ استعداد دشاګردانو په سويه درس مخ ته وړي، او دکمزورو شاګردانو داهمال سبب کيږي. کله فقر او مالي بې وسي ديو شاګرد دبې رغبتی باعث شي، او نه شي کولی په ارامه ذهن خپلو درسونو ته دوام ورکړي.

دا ډول ستونزې هغه ستونزې دي چې دشاګرد سره تړاو لري، خو دا قابل علاج ستونزې دي، او په حل کولو کښې يې اداره او په ټوله کښې استاذ کليدی کردار لوبولی شي. اداره بايد ديوې مشفقې او مهربانه مرجع په توګه دشاګردانو په زړونو کښې ځای ونيسي، او استاذ

باید داستاذې ترڅنګ دیو صمیمي دوست او خواخوږي په توګه شاګردانو ته خپل باور ورکړی وي. بیانو که چیرې دکورنی نا مساعد حالات دیو شاګرد دبې رغبتی سبب وي، اداره او استاذ کولی شي دنوموړی شاګرد دکورنی سره په بیلا بیلو وختونو کښې ناستي ولري ترڅو دپیښې ستونزې اړوند حل او تفاهم ته ورسیږي. که فرضا داستاذ رویه دبې رغبتی لامل وي، نو صمیمي اړیکی یواځینی لاره ده چې دشاګرد په رشد او پالنه کښې محوري رول لري، او یوه فعاله اداره باید پدې اړه ناخبره ونه اوسي.

که چیرې په یو مضمون دنه پوهیدا له مخې یو شاګرد اهمال کوي، نو باید استاذان په هماغه مشخص مضمون کښې دشاګرد نیمګړتیاوې ورحل کړي، ترڅو دفهم کچه یې له نور سره برابره شي. دلته غواړم خپله یوه خاطره درسره شریکه کړم، دمدرسې دپیل په وخت کښې مې دصرفي ګردانونو دزده کولو سره بلا ورانه وه، دزده کولو هیڅ هڅه یې ما نه کوله، میزان الصرف مو ویلو، او دمنشعب برخې یې بیخي زړه رانیولی وو، زمونږ استاذ وو مولوی صیب حضرت محمد -رحمه الله- الله تعالی په جنت کښې لوړ مقام ورپه برخه کړي، نورې ورزې به یې درس ویلو او دچارشنبې په ورز به یې پوښتنې کولې، او سخت وهل به یې کول، زه به دغه ورز مدرسې ته نه تلم؛ ځکه ګردانونه مې نه زده کول، آخر مې فکر وکړ چې تر څو به له مدرسې پټیږې، بس عزم مې وکړ چې دا ګردانونه به یادووم، سل دانې تسبې مې پیدا کړی، اول مې دفعل ماضی ګردان پوره سل ځل وویلو، او بیا مي یاد شو، بیا مې دفعل مضارع، بس نور مې بیا ترآخره نه بې ضرورته غیرحاضري وکړه، او نه راته نور په صرف کې ستونزه وه. که چیرې دشاګردانو فشار دیو شاګرد روحي مورال ګوابنلی او دهغه دبې رغبتی باعث شویوي؛ نو داداري دنظم کمیټه باید دغه ستونزه برسي او تعقیب کړي، او دشاګردانو ترمنځ دهمکاری او تعاون روحیه تلقین کړي. همدا راز که فقر دیو شاګرد ددرس مانع کیږي، باید اداره دمتمولو اشخاصو له لارې ممکن دشاګرد ستونزه حل کړې چې دا زمونږ داسلافو سیرت دی، او دمعاصرې نړې دیرې تعلیمي اداري دنادارو زده کوونکو لپاره د(وجهي صندوق) په نامه ځانګړی بخش لري.

**ب: له درسونو تیښته:**

ځینې مهال په بالقوه توګه ذکي طالبان وینو چې شوخ طبیعتونه لری، خپله هم درس نه وایي او نور هم له درسونو کاږي، داهم یوه ستونزه ده چې حل یې له څو لارو ممکن دی:

**۱- داستاذ ګذشت:**

دا ډول شاګردان عموما استعداد لري، خو شوخي او له درسونو تیښته یې عادت ګرزیدلی، که چیرې استاذ دحکیمانه رویي له مخې دغه ډول شاګردان له ناکامی وژغوري، او کامیاب یې کړي، دا کار ډیر ځله پدوي کښې مثبت احساس پیدا کوي، درسونو ته را مایل کیږي، او پدې فکر یې مجبورروي، که چیرې درس ووایي نو ښې نمرې او لوړ مقام به ترلاسه کړي.

**۲- تنبیه :**

که چیرې له معقول ګذشت سره سره بیا هم سم مسیر ته را ونه ګرځي نو اداره یا استاذ باید دا ډول شاګردان تنبیه کړي چې دا څو لارې لري:

۱- توصیه ورته وکړي.

۲- نمرې یې قصدا ورکمې کړي، او دبې نظمو شاګردانو په کتګوری کښې یې وشمیري.

۳- مناسبه تادیبي جزا ورکړي.

شیخ الحدیث (اسحاق زی)

# لنډ تاریخي حقایق

۱۷- دښځو د تیرایستلو او بی عفته کولو لپاره دامن په نامه فاحشه خانی په لویو لویو ښارونو کې او دهغوی هڅه ول وغیره مشروعه کارونو ته او په کورنیو کې نفاق او دخودسری او دکورنی د داخلی جوړښت له منځه وړل دجهنمی دیموکراسی اصلی مقصد او غایه ده چې موږ یې پخپلو سترګو وینو، که تاسې ودی څوارلس کلن تاریخ کې په هیڅ اسلامي ملک په دومره اندازه ځان سوځونه نده کړی لکه چې پدې څوارلسو کالو کې په افغانستان کې خصوصاً په هرات، جوزجان ،مزارشریف او نورو شمالی ولایاتو کې کله چې د زورواکو او چارواکو لخوا بی عفته شوې نو ځکه هغوې خپلو ځانوته اور ورته کړه او دخپل ژوند څخه یې ځانونه خلاص کړل.

دغه رنګه کومی ښځی چې دموجوده بریځو له خوا متهم او یا محبوس دی دهغوې سره جبراً دمستنطیقینو او یا څارنوالانو او یا قاضیانو له خوا تجاوز او تیری شوی دئ چې ددوی دخپلو میډیاوو لخوا اعلان او نشرشول چې ډیر دافسوس اوشرم حالت دی. خلاصه څومره جنایتونه چې دښځو سره دچارواکو له خوا په دې څوارلسو کالو کې ترسره شول قلم یې دلیکلو څخه عاجز او بس په اعلانولو سره هیر شول او هیڅ جانی ته دهغه دجنایت جزا ورنه کړه شوه، دغه رنګه څومره چې داشغالګرو قواوو د اوسیدلو ځایونو ته د منطقی دمفسدو او جنایت کارانو پواسطه دپیسو په مقابل کی کومې فحشاوی وشوی قلم یې دافغانی عزت په خاطر له لیکلو عاجز دی.

۱۸ - دمزدورې او ګوډاګې ادارې په سرکې اکثره دشر اوفساد هغه مفسدزری مقرر شول چې حتی ابتدائی لیک او لوست ئې سرته نه وو رسولی دعسکری او امنیتی ادارو مسؤلین چې یوه ورځ هم د امنیتی اداری اصولنامه هم نه وه لوستی ډیر لوړاو آخرنې منصبونه ورکړه شول سره لدې چې هغوې د دولسم صنف دلوستی سره آشنائی نه درلوده یعنی مارشالی او سترجنرالی خو دهغوي ذاتې او فطري حق وګرزیده.

۱۹ - په اداري تشکیلاتو کې پخوانې سرې وژونکې کمونستان،ماتوئست غربی لنډه غرو دشر او فساد دپیژدل شویو څیرو ترمنځ ددوي دهغه صداقت په نتیجه کې چې د ډیر پخوا څخه یې د اشغالګرودجاسوسی سازمانونو سره د ارتباط له وجی درلودل ورکړه شول.

۲۰ - دپارلمان په نامه هغه ناافغانان چې له هره جهته یې اسلامی ضد،افغانی ضد او انسانی ضدعملونه سرته رسولی وه ټول یودبل سره پخوانی نه پخلاکیدونکی دښمان ولیکن اوسنی ورک وروڼو سره پیداکړل او داشغالګرو پریودسترخوان باندې تیر پر تیر او هیر پر هیر. دا پخوانې مجاهدین او داوسنې غربی سوتکراسی دشرابوپیالی یو له بله سره وجنګولی دبوش او اوباما

دسردسلامتی په خاطر افسوس مطابق دکلام الهی ددی ایت مبارکه.

ژباړه: چې الله جل جلاله فرمايي ( داسی مه کیږئ لکه هغه کسان چې الله يې هیر کړ او خپل ځانونه يې هم هیرکړل او داسې کسان دالل جل جلاله دحکونو څخه دسرغړونکو ملګرې دي ) اعاذناالله من ذالک، اوځینې ناپوه او جاهل مفتیان خو بیا داهل کتابو ترنامه لاندې دهغوې اشغال ته جواز ورکوی، او وایې چې دشوروی په مقابل کې دغرب کومکونه دجهاد ترنامه لاندې منظور وه، ولیکن اوس چې دوی زمونږ کومک ته مستقیم راغلی دي نامشروع عمل وایاست؟ دغرب دکمکونو نتیجه خو هم دا نن موږ وینو چې داننی دشر اوفسادلیډران خو په هم هغه وخت کې پراستخباراتي سازمانونو خرڅ شوی وه، چې د پرون دعلت سبب نن وینو.

۲۱ - داشغالګرو له خوا په افغانستان کې دوه متوازن اوله هره حیثه مساوی الحقوق حکومتونه خو لیکن متضاد او نه پخلا کیدونکې اداري چې په هر لحاظ سره د ټولو بشری ادارو مغایر حکومتونه دي ، په انساني تاریخ کې ساری نه لرې او نه هم دبشری ټولو په ادارو کې تر نن پوری لیدل شوی. نه د پارلمان سیستم سره سمون خوری او نه د اشتراکی او نه مطلق العنان حکمتونو دسیستم سره سر خوری او نه داشتراکی او نه مطلق العنان حکومتونو دسیستم سره سر خوری، نو ځکه دا حکومت داشغالګرو پواسطه جوړه او ناکامه او شړیدلی اداره ده، داشغالګرو په اصطلاح دا هغه دنوی شکل دموکراسې ده چې هر عاقل انسان يې نوم اخیستو سره شرمیږی. دملک په ټولو ادارو کې فقط کش مکش او یوه ډله د بلی ډلی دخنثی کولو لپاره دبزکشی میدانونه جوړ کړی دی.

۲۲ - دافغانستان هغه ښاری سیمی چه ددی دوو حکومتونو تر حاکمیت لاندې دي د اوسیدونکو ژوند د ټولو بشری کړاوونو او ازمایښتونو سره مخامخ دې دهیڅ چا مال عزت او ژوند دخطرو خالی ندی نه د امنیت په لحاظ او نه د تعلیم او تربیې او نه دصحت له درکه نو ځکه د پیښور د ډبګری منډوی د افغانانو دصحت مندلو لپاره دبولی لوی میدان ګرزیدلی دی.

د څلورو میاشتو په تیریدو یوازی دغرب وخواته د افغانستان څخه د ټولنی ځوان قشر تر یونیم لکو زیاد ځوانان تښتیدلی دی چې دا حالت دهر باشعوره انسان لپاره دقبلولو ندې دولس سره دغه ښامارانو وینې او غوښی دخوړلو نه وروسته اوس دولس دهډکو په ژولو شروع کړیده.

۲۳ - پدې څوارلسو کالو کې غربی میډیا دهندوستان داستخباراتی اداری په شمول دتصور نه خارج زهری او منافقانه نشرات د ډیورند لاین دواړو غاړو پراته ورونه قومونه چې په ژبنی ، قومی، دینی، او مذهبی لحاظ او همدارنګه درنګ، فرهنګ، رسومو او عاداتو په لحاظ د سیحون او جیحون څخه بیا تر اباسین پوری دخپل پیدایښت څخه بیا تر نن پوری هیڅ یو استعماری قوت او طاقت بیل نه کړای شول خو لیکن اوس پورته ذکر شوی منحوسی استخباراتی کړی خپل ټول قوت ددی یو قوم پّ منځ کې دنفرت او یوله بل څخه دلیری والی زهرجن تخم پاشی خو لله الحمد لکه چې متل دی، دچې اوبه په ډانګ نه بیلیږی، او ان شاء الله ترقیامته به ددی قوم دپاشلو او بیلولو ارمان خاوروته له ځان سره یوسی ددی قوم میړانه دسکندر نه نیولی بیا د ټول تاریخ په اږدو کی دمغلو، افشاریانو، سیکانو، ساسانیانو، ګرګینیانو، فرنګیانو، دشوروی سور ښامار اوهمدا اوس د ټولی دنیا دزبرځواکونو په شمول د اسلامی ملکونو دفاسدو حاکمانو پدی څوارلس کاله کې ونه توانیدل چې ددنیا پر دی غریب، ناداره لین د ایمانه او غیرته څخه ډک اولس باندې خپله پلیده او دوحشته ډکه سوتکراسی ومنی، د خوشحال خان

# ګلځونه

اگر برای یک اشتباه هزار دلیل بیاورید، درواقع هزار و یک اشتباه از شما سرزده است.

ابن سینا

نشان دوست نکو آنست که خطای تورا بپوشاند، تورا پند دهد و رازت را آشکار نسازد.

ابن سینا

## رباعیات

آزادی شـهر از حصـارش پیداسـت
از کینـه ی چوبـه هـای دارش پیداسـت
فـردای مـن و تـو بـاز هـم تاریـک است
سـالی کـه نکوسـت از بهـارش پیداسـت

.................................

افسـوس کـه عمـر خـود تبـاهی کـردیم
صـد قافلـهء گنـاه، راهـی کـردیم
در دفتـر مـا نمانـد یـک نکتـه سـفید
از بـس بـه شـب و روز سیاهی کـردیم

شیخ بهایی

## ځپاند بریدونه

عرفان الله عرفاني

د انقلاب د شـپېلۍ شـور دې پرګنـې پـاڅوي
د تکبیر ځـوږ دې خوبـولې حماسـې پـاڅوي

د سـوبې ګـام دې دغلـيم پرتیـر بیـا کېښـودو
د تـورې شرنګ دې بیـا خاموشه زلزلې پـاڅوي

د سـپین سـبا دازادۍ د آذان غـږ دې راځـي
دتیـارو غیـږ نـه ښایسته سـپینې سـپیدې پـاڅوي

مړاوو رګونـوکې دې وینـې دکسات پـه جوش کړې
ځپاند بریدونه دې د ټول ملت جذبې پـاڅوي

د وخـت طالبـه پـه رښـتیا یـې دغزاوو امام
دا جهـادي خوځښـت دې نـوې معرکـې پـاڅوي

چې پـه تیـاکو پښـوکوې اغـزن اغـزن مزلونـه
د اوږدو لارو سـترې سـترې قـافلې پـاڅوي

بیـا بـه یـې وایـي بلـبلان پـه داؤدي تـرنم
د عرفـاني قلـم بیـا نـوې ترانـې پـاڅوي

# پرفیس بوک آنلاین فی البدیهة مشاعره

د تېرې جمعې د شپې لسمه (آنلاین فی البدیهه مشاعره) چې د ښاغلي (عرفان الله عرفاني) صاحب دفیس بوک پر دېوال تر سره شوه په لاندې ترتیب یې کتلی شئ!

د معمول له سره سم دا دې مشاعره د ښاغلي (احمدي) صاحب دنعت شریف په مطلع پیلوو، په همدې قافیه او ردیف یې راپیل کوئ!

**بلال خو کله دا ویلو چې جانان به نوي**
**د مدینې کوڅې به وي نبي سلطان به وي**

دامې احساس دامې ضمیر او دا مې زړه نه مني
چې انقلاب به وي اوښکلی طالب جان به نوي
مالک وفا

دوی خو په فکر د عراق او فلسطین راغلي
گوته په غاښ شول ویل یې دا افغانستان به نوي
خالق یار احمدزئ

که خدای کول دا سپین بیرغ به په ارگ ورپیږي
د امارت واگې به ټینگ شي ظالمان به نوي
عبدالله ذکر

زمونږ جونگړې ته اوبه راغلې را وڅڅېده
هغلته و گوره جانانه چې یاران به نوي
زرقاوي ځاځئ

دا سپېرې دښتې به را و ټوکوي بیا گلونه
تل خو به دا سرې سیلۍ بدرنگ خزان به نوي
عرفاني

په توره شپه یمه ولاړ د تود سنگر لمن کې
دروکې گرځم د غلیم چېرته ټکان به نوي
عزیزالله حسیني

د استکمال او استحکام په څو پوړیځو هڅو
د مستصحبو شاعرانو عرفان جان به نوي
خالق یار احمدزئ

بیا به جوړه گرځم جانان سره په مینه مینه
دغه بد مخي غمازان او رقیبان به نوي
عرفاني

که کله ستا په پاک بشر- باندې دردونه نوي
پوه شه چې نوره زندگي زمکه اسمان به نوي
صدیقي احمدزئ

چې څنگه درز شي اربکیان د یو بل شاته پټ شي
یوبل ته غلي غلي وایي طالبان به نوي
زرقاوي ځاځئ

که مې دا ستا لمنه کلکه کړله سپینه یاره
تل به مې گټه وي او هېڅکله تاوان به نوي
صدیقي احمدزئ

د خوشحالۍ په انتها به مې الله خبر وي
حوض کوثر د جانان څنگ وي او هجران به نوي
مستفید

مونږ افغانان له خپل وطن نه همېشه ځاریږو
د یرغلگرو سره مل هغه افغان به نوي
جبار تنها

زما به کله دارمان پوره شي لویه خدایه
چې زه یواځې ووم په کلي رقیبان به نوي
عبدالهادي احمدي

د غزلونو یو یادگار به درته جوړ کړمه زه
دا یادگار به درسره وي خو ریحان به نوي
ریحان جان ذاهد

د یرغلگرو مزدوران دي دا له زړه و باسي
چې صلیبیان به دلته وي او فدایان به نوي
مستفید

یوځل به بیا سپین بیرغونه په هر لور ورپي
شي به هېواد ازاد نور دغه کافران به نوي
عبدالستار پرهاري

زما گډوډ غزل به لیک وي د تاریخ پر پاڼه
له ډېرو پاتې به اشعار وي شاعران به نوي
عرفاني

د چاچې زړه د خوار یتیم په فریاد نه ځوریږي
ملگرو هغه کس حیوان به وي انسان به نوي
ابدالي اشنا

چې د حساب کتاب په وخت کې شفاعت مې وکړي
که تلاشي مې کړي زړگی خو بل ارمان به نوي
مهربان مجاهد

کبر غرور مکره انسانه تاته څه پته ده
تل خو به دارنگه ځواني او دا دوران به نوي
عبدالمقیم ناقرار

گرانه وطنه خفه نشې انتظار او سېره
نور آزادي راځي نور دغه لوی بحران به نوي
امارتي زلمی

د زړه امان به مې پوره شي په فاني دنیا کې
تل به خوښي او خوشحالي وي نور خفگان به نوي
عبدالمقیم ناقرار

خټک دا دوه غیرتی بیتونه ددی قوم دغیرت لوی مثال دی چې وایې :

لاتــر اوســه یــې مــاغزه پــه قــرار نــدي
چــا چــې زماســره وهلــی ســر پــه ســنګ دی

لاپــه خــوب کــی پــه لــرزه پریوزی لــه کتــه
چــې دچــاترغوږ زمــا د تــوری شــرنګ دی

سره لدی چې په ځینو وختونوکې خاصو ضعیف النفسو، خودخوا اودمال او بی ځایه ګټې مینانو ددی غیرتی قوم دویشلوبی ګټې هڅی کړیدې لاکن درسوائی، شرمنده ګې اوناکامی سره مخامخ شویدې، لکه چې همدا اوس په سترګو وینو چې په افغانی ټولنه کې اشغالګرو دلږه کیو څخه دخپل اشغال د دوام په خاطر ګټه اخلی او دراتلونکی لپاره هم پدی امید کی دې، داناافغانان ګوډاګی بریځی هم پردیو لره مخلص او خپل ژوند بیله اشغالګرو څخه ختمیدونکی بولی آن اوس هم خپل ځانونه دجهاد او مقاومت خطر ګنی . حال دا چې ددوی عملونه پر افغانی پاکه خاوره دالهی قهر توری وریځی راخپری کړیدې او ان شاء الله لیری نده چې دالهی رحمت رڼا ورځ راوخیږی ، او دافغان ولس ددی بی شماره قربانیو، شهادتونو،هجرتونو، معدومینو، معلولینو له وجهی د الله جل جلاله فضل اورحمت وشی اوافغان ولس د الهی شرعی ښایسته خپلواک نظام خاوند شي ، وماذالک علی الله بعزیز. پدې توره تیره شوی زمانه کې دتولو حقایقو په لیدلو سره چاروکو هیڅ ډ ل پند او عبرت وانه خیست، او نه یې هم پردی مظلوم او غم ځپلی ولس څه لږ اندازه زړه سوی هم ونه کړاونه یې هم دخپلوتیرو جنایتونو په کولو سره دالله جل جلاله له لوی دربار څخه دعفوی غوښتنه وکړه او لا نور هم پرخپلو کړونو اسرار او همیشه توب لری، اودهیواد راتلونکی نوره هم تیاره پریښی او په وطن کی دهیڅ ډول هوسائینی امیدونه ددی سپیرو په وجه په نامیدی سره لیدل کیږی، لنډه دا چې د انسانی ټولنی خصوصاً داسلامی نړی والی ټولنی ، بریا، سعادت،نیک بختی ، سرلوړی ددنیا ، عالم برزخ او آخرت ټولی نیک مرغی دالهی ارشاداتوپه ملنو او عملی کولو سره لاسته راځی، الهی کلام حکم کوی چې مسلمانان د ژوندون ټول اړخونه او مسائل دالله اودهغه درسول صلی الله علیه وسلم دحکمونو مطابق حل او فصل کړی ، چې لیکونکی فقط په لنډ ډول سره دقرآن مجید دځو مبارکو آیتونو ژباړه رانقل کړی .

۱ - دسوره احزاب (۳٦) نمبر آیت مبارکه ( چې هیڅ مؤمن که هغه نر وی او یا ښځی مؤمنی لره دا اختیار او صلاحیت نشته چې الله او دهغه رسول صلی الله علیه وسلم حکم وکړی چې دوی د ژوند بله لاره غوره کړی ا وهر څوک چې دا کار وکړی هغه په حقیقت کی غوره لاره ورکه کړه) .

۲ –دسوره حجرات (۱) نمبر آیات چې الله جل جلاله فرمائی: (ژباړه: ای هغه کسانوچې پر الله یقین اوایمان لری په هیڅ کار کی د الله او دهغه درسول صلی الله علیه وسلم څخه نافرمانی مه کوی ، ځکه چې ستاسوپه خبروخبر اواوریدونکی دی) .

۳ - دسوره آل عمران (۳۲)نمبر آیت ژباړه ( ورته ووایه ای پیغبره چې دالله جل جلاله اودهغه دحکمونو اطاعت وکړی او که مو له هغه نه مخ واړاوه ( بی لاری کیږی) نو په هغه وخت کې الله بی لاری (کافران) نه خوښوی.

٤ - دسوره نسأ (۱۷۹ او ۸۰) آیت ژباړه ( خپل رسول صلی الله علیه وسلم ته فرمائی چې ماته خلکو ته دنیکی لاری دښوولو لپاره لیږلی یې او دالله جل جلاله ګواهی پدی باره کې بس ده، هرڅوک چې درسول صلی الله علیه وسلم اطاعت وکړی نو په حقیقت کې یې دالله اطاعت وکړ او که څوک مخالفت وکړی دهغه دمخالفت بدله به الله جل جلاله ورکوی).

۵ –دسوره نسأ (۵۹) نمبر آیت مبارکه : ژباړه: ( چې مؤمنانو دالله جل جلاله او دهغه درسول صلی الله علیه وسلم حکم ومنی او دهغه آمر چې مؤمن او مسلمان دی ) ۰

کله چې ستاسی په منځ کې کومه نزاع یا مشکل پیدا شو نو دالله اودهغه درسول خواته مخ واړوی ، یعنی فیصله په شریعت سره وکړی که په رښتیا پر الله او دهغه پر رسول ایمان لری او پر حساب دقیامت یقین لری، دالله او درسول خواته ورگرزیدل ددینا او آخرت کامیابی ده،

٦ – دسوه الانفال (٤٦) نمبر آیت مبارکه ژباړه: ( دالله جل جلاله او دهغه درسول صلی الله علیه وسلم دحکم اطاعت وکړی او هیڅ کله د اختلاف او منازعی لاره مه نیسی چې داختلاف په سبب به بیا دالله جل جلاله په لاره کې سست ، ډارن، او کوم معنوی قدرت اوعظمت چې الله جل جلاله مسلمانانو ته ورکړی ورڅخه ولاړ شې، بلکه یوزړه او صابر اوسی چې الله جل جلاله دصابرانو ملگری دی ۰

۷ –دسوره مائده (۹۲) نمبر آیت مبارکه : ژباړه: ( دالله جل جلاله او دهغه درسول حکم ومنیاو دالله جل جلاله نه وویړی او که مو لدی نه مخ واړاوه نو زموږ درسول صلی الله علیه وسلم وظیفه خو د الله جل جلاله دحکم رسول دی تاسو ته او پر هغه نور تکلیف نشته) ۰

۸ –دسوره نور(٦۳) نمبر آیت مبارکه : ژباړه: ( الله فرمائی چې ای مؤمنانو کله چې رسول صلی الله علیه وسلم تاسی رابولی او درباندې ږغ کړی نو تاسی داسې فکر مه کوی لکه چې تاسی پخپل منځ کې یو اوبل ته آواز کوی ځکه چې درسول صلی الله علیه وسلم لپاره ادب لازمی دی، او الله رب العزت په هر هغه چا چې درسول صلی الله علیه وسلم دحکم نه سرغړوی او ځان پټوی ښه خبر دی، نو هر هغه څوک چې دالله دحکم مخالفت کوی باید وویریږی چې کوم وخت به په لوی عذاب او بلاکې راگیرشی۰

۹ –دسوره الانفال (۲٤) نمبر آیت ژباړه: ( ای مؤمنانو کله چې الله جل جلاله اودهغه رسول صلی الله علیه وسلم تاسوته دایمان دعوت درکړی چې دا ستاسې لپاره د ابدی ژوند لویه کامیابی ده قبول کړی او پدې پوه شې چې الله رب العزت ستاسې په ټولو پټو اسرارو خبر دی، او ټول دالله جل جلاله حضورته حاضریدونکی یاست۰

۱۰ - دسوره نسأ (۱۳ او ۱٤) آیتونه ژباړه : ( هرهغه څوک چې دالله جل جلاله او دهغه درسول صلی الله علیه وسلم اطاعت وکړی نو داخل به شې داسې جنت ته چې ترقصرونو او میوه داره ونولاندې به همیشه وی او دا ستره او لویه کامیابی ده۰ او هر هغه څوک چې دالله او دهغه درسول دحکم نافرمانی وکړی نوهمیشه به په اور کې ځیړی هغه شرمونکی عذاب دی۰

۱۱ –دسوره نسأ (٦۰) نمبر آیت مبارکه ژباړه : ( آیا نه وینی هغه کسان چې گمان کوی پر هغه کتاب چې پر تا نازل شوی او یا دقرآن نه وړاندی پر نورو کتابونو ایمان لری نو بیا څرنگه پر شیطان او یا شیطان صفته انسانانو ته دخپلو منازعو حل وړاندې کوی، حال دا چې دالله له طرفه دوی ته حکم دی چې تاسې شیطان دښمن وبولی او شیطان غواړی چې دوی کافر کړی ۰ نو منافقان خو گوری چې څنگه خلک تاته دراتگ او ستادمنلو نه منع کوی۰

۱۲ –دسوره نور په (۵۲) نمبر آیت ژباړه : ( حقیقت دا دی چې مؤمن او مسلمانان کله دالله او دهغه خواته راوبلل شې اودهغوی په منځ کې فیصله وشې نو وایې چې اطاعت کوو او منوئی۰

۱۳ –دسوره حشر (۷ ) نمبر آیت مبارکه ژباړه : ( هر هغه حکم چې رسول صلی الله علیه وسلم تاسې ته کوی ویمنی۰ او له هر هغه څه چې تاسی منع کوی منع شې۰ او دالله جل جلاله څخه وویریږی ۰ ځکه الله جل جلاله دسخت عذاب مالک او خاوند دی۰

۱٤ – دسوره احزاب (۲۱) نمبر آیت ژباړه : ( ستاسو لپاره تر هر څه بهتره او نیکه اقتدا په پیغمبر علیه السلام پسې دهنو هغه څوک چې دقیامت دورځې او دالله څخه دګټې او ثواب هیله لري، او دالله جل جلاله همیشه ذکر کوي.

۱۵ – دسوره نجم (۱ او ٤ ) نمبر آیت ژباړه ( قسم په هغه ستورې چې ولوېږي چې ستاسې ملګرې نه ګمراه شوی دی، او نه هم باطل ته تسلیم شوی او نه هم دخپل ځانه څخه خبرې کوي، دا قرآن فقط وحی الهی دی .

۱٦ – دسوره نحل (٤٤ ) نمبر آیت ژباړه ( نازل کړې موږ وتاته ذکر ، پند ، عبرت، قانون، دعمل قرآن ددی لپاره چې ته ئې وخلکو ته واضح بیان کړې ، او دوی سوچ او فکر وکړي . نو که متوجه شو هر هغه ذات متعال چې پالونکی ، روزونکی، مدبر دعلویاتو څخه بیا تر سفلیاتودټول عالم هستي دی، نومطابق دهر صنف دضرورت ، کامیابی ددنیا اوآخرت لپاره ددوی دتوان اوطاقت په اندازه مکلفیت غوره کړیدی، چې هغه دکلام الله اواحادیثو نبوی صلی الله علیه وسلم په پیروی کې نغښتی دی او که حقیقت ته تسلیم شونو دعالم بشریت خصوصاً داسلام ټول امت مشکلات ، ناخوالی، کړاوونه او ذلت فقط داسلامی شریعت څخه لیری والی او کفری او شیطانی اصول او مقررات منل دی، ځکه چې عمل مصداق له نیت څخه دی، خصوصاً دټولی اسلامی نړی ننی حاکم واکداران ټوله مفسد، پلورل شوی پر کفاراو شیاطینو باندې دی او حتی داسلامی احکامو څخه ددوی بی خبری او ناپوهی ددی لامل ګرزیدلی ده چې رعیت هم ځانو سره ګمراه او داسلام له لاری څخه بیګانه کړی، که تیرو تاریخی واقعاتو ته نظر وکړو نو وینو چې په نامه مسلمانانو څومره د الله او دهغه درسول صلی الله علیه وسلم داحکامو په نه منلواو نه عملی کولو سره ستره جفا، خیانت او بی پروایې کړیده، لنډه دا چې دخپلی ټولنی (ګران افغانستان ) دا تیر شوی لنډ څلویښت کلن تاریخ په څومره زیاته پیمانه له غمونو او کړاونو څخه ډک دی، او ددی ټولو ناخوالو مسئولین پخپله افغانی چارواکی دی او دالله جل جلاله اودهغه درسول صلی الله علیه وسلم په مقابل کې یې دجنګ اعلان کړیدی اکثره واکداران کفری نړی ته دخپلو جنایتونو له درکه تښتیدلی او بیرته هم هغو کفارو پر افغانی ټولنی مسلط او واکدار کړل ، صلیبان او دهغوی بریڅی چې دمال اومتاع پخاطر له خپل الله نه منکر دی. نوایا دوی به دافغان مسلمان ولس څه درد دواکړی، تیرو پنځلسوکلونو ته وګوری چې اشغالګرو کفارو دمجاهدینواوماومت ددړی وری کولو او تفرقی له لاری ټولی شیطانی دسیسی اوطوطعی پکار واچول خولله الحمدچې دالله په فضل سره خنثی شوی، دمفسیدو چارواکوڅخه افغان میړنی ولس آن تر دی اندازی ستړی اوخواشنی دی چې اسلام خو پریږده دیو انسانی نظام او رژیم په امید شپی سباکوی، دی افغانی اسلامی ټولنی ته کفارو او شیاطینو دانسانی نړی تر ټولو څیرونکی او انسان وژونکی لیوان پر سر دقدرت کړیدی ، اوبیا کله دولسی پاڅون او کله ژبنی ، قومی، انشعابی، او تکفیری پاڅونونه په خپلو شیطانی کومکونو تقویه کوی،

( ومکرو ومکرالله والله خیر الماکرین) فقط دا یو آیت مبارکه دقرآن عظیم الشان پخپل اصلی عبادت کی دمؤمنو مجاهدینو لپاره پړی شرط بس او کاپی دی چې د کفاروپه مقابله کې چې دجهاد او مقاومت مرچل وال تقوی او ویره دالله جل جلاله څخه خپله کړی او دصبر څخه کار واخلی او پر الله توکل وکړی نو راتلونکې نیک اودسعادت ابدی ژوند به ئی نصیب شی ان شاء الله .

# بحران اخلاق در دنیای امروز

سید حسان

اسلام دینی وحدت طلب و اُنس پذیر و راهگشا برای معضلات و ناهنجاری‌های اجتماعی در جوامع بشری است. پیامبر رحمت صلی الله علیه وسلم این نمونه را در جامعه‌ی مدنی نه تنها با مسلمین پیاده کردند، بلکه با یهود نیز تعهد شهروندی بستند و آنها را به عنوان یک شهروند پذیرفتند و تا وقتی که به تعهدات خود پای‌بند بودند، به آنها بها دادند و حرمت‌شان را به عنوان یک شهروند حفظ کردند. در فتح مکه، عفو عمومی اعلان شد: «اِذْهَبُوا وَأَنْتُمُ الطُّلَقَاءُ»؛ بروید شما آزاد هستید. سبحان الله! نبی رحمت حتیٰ شرط آزادی مشرکین مکه را مبنی بر اسلام آوردن آنها نکرد.

کجای تاریخ می‌توان این عفو، بخشش و اخلاق نیکو را یافت؟! مشرکین مکه که دشمنان سرسخت آن‌حضرت صلی الله علیه وسلم بودند، مدهوش از این فعل و اخلاق پیامبر، و عاشق و دیوانه‌ی الگوی رحمت، و از جان بر کفان اسلام و شهسواران میدان عشق و دلباختگی شدند.

قرآن در مراحل مختلفی، پیروان خود را به سعه‌ی صدر و دوری از تندروی و توهین نکردن به ادیان دیگر امر می‌کند؛ چرا که اسلام دین کشتار و خونریزی نیست، بلکه ساحر قلوب و عقول است. تمام کُشته‌های غزوات پیامبر اکرم صلی الله علیه وسلم از هر دو طرف (مسلمانان و مشرکین) به سیصد نفر هم نرسید!

چطور می‌توان گفت این دین روشی ارهابی و خونریز دارد؟

اسلامی که با کمترین هزینه‌ی کشتار در شبه جزیره جای گرفت، چطور ناجوانمردانه به این دین پرچسب‌های واهی می‌چسبانند؟

در حقیقت شعار اسلام، مسامحت و انسان دوستی است و این مشقی است که سینه به سینه به پیروان این امت رسیده و زندگی خلفای راشدین گواهی زرین بر مکارم اخلاق و دوری از فتن و افراط‌های بی جا است. حضرت عمر هنگامی که به شکلی ناجوانمردانه مجروح شد، به قتل عام تمام برده‌های مجوسی دستور نداد؛ بلکه یک جان در مقابل یک جان. گرچه با قتل سیدنا عمر دروازه‌ی فتنه شکسته شد، ولی سیدنا عثمان، خلیفه‌ی مظلوم و الگوی تسامح و از خودگذشتگی با فتنه همراه نشد و قول زرینش تا ابد در صفحات تاریخ جاودانه خواهد ماند: «وَاللّٰهِ إِنَّ رَحَىٰ الفِتْنَهِ لَدَائِرَةٌ، فَطُوبىَ لِعُثْمَانَ إِنْ ماتَ وَلَمْ يحَرِّكْهَا»؛ به خدا قسم، چرخ فتنه در حال گردش است، چه خوب است که عثمان بمیرد و این چرخ را حرکت ندهد!

حکام مسلمان باید با تعمقی بیشتر به سیرت حضرت عثمان بنگرند؛ با اینکه حاکم سرزمین‌های پهناوری از آسیا و آفریقاست، اما حاضر نمی‌شود به خاطر خودش حرمت مدینه و ساکنین این شهر را پایمال کند. متأسفانه شاهدیم که اکنون به خاطر یک سرزمین کوچک، صدها هزار نفر آواره و کشته می‌شوند. آ فتنه‌ایی که در خاورمیانه شعله گرفته، معلوم نیست دامان چند سرزمین دیگر را بگیرد و چندهزار خانواده‌ی دیگر بی سر و سامان، و چه بسا کودکانی دیگر را بی‌خانمان گرداند.

سرزمین شام، سرزمین برکت‌های الهی در امواج فتنه، گیر کرده و راه برون‌رفتی ندارد؛ این روایت مشهور چه‌قدر در این ایام معنای واقعی به خود گرفته است: «الفِتْنَةُ نَائمَةٌ لَعَنَ اللّهُ مَنْ أَيقَظَهَا»؛ فتنه خوابیده است، لعنت خدا بر کسی که فتنه را برانگیزد.

سرزمینی که وجب به وجب آن مدفن صحابه‌ای هم‌چون بلال و معاویه؛ و پهلوانانی هم‌چون خالد و صلاح الدین؛ و اندیشمندانی هم‌چون اوزاعی و ابن تیمیه است، در اوج خشونت و درگیری‌های خونین غوطه‌ور شده، دیگر حلقات درس و حضور هزاران نفر در مساجد را باید در تاریخ نظاره کرد و بر این سرزمین گریست.

بی اخلاقی، خشونت، تحمل نکردن یک‌دیگر، عدم تعامل و فتنه‌ها به اوج خود رسیده است و متأسفانه این موارد در تمام سطوح جامعه به وضوح حس می‌شود. ملتی که باید برای دنیا نظام اخلاق را برنامه‌ریزی می‌کرد، اکنون در منجلاب بحران اخلاق به دام افتاده و روز به روز بر این منش بی اخلاقی‌اش افزوده و صفات نیکوی سلف خود را به باد فراموشی سپرده است؛ ﴿فَخَلَفَ مِنْ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ أَضَاعُوا الصَّلَاةَ وَاتَّبَعُوا الشَّهَوَاتِ﴾. این آیه حال بغرنج مسلمانان است، حتی مصلحی وجود ندارد که اوضاع نابسامان کشورهای اسلامی را به هم پیوند زند.

غرب، نظام بداخلاقی و خشونت را در کشورهای اسلامی گسترانیده و متأسفانه مسلمانان هم در این نظام بدبو دست غرب را گرفته و همراه نسنجیده‌ی بداخلاقان و بی‌نزاکت‌های دنیا شده‌اند.

راه حل این اوضاع نابسامان بسیار ساده وفقط یکی است و آن هم رجوع به قرآن و سنت ومطالعه‌ی دقیق نیاکان و اسلاف این امت؛ به امید آن روز!

# رهبر کره شمالی چه بیماری ای دارد؟

به گزارش جهان، رهبر جوان کره شمالی در چهار سال گذشته ۴۰ کیلو اضافه وزن داشته که خود نشانگر این است که وی احتمالا بیمار است.

به نقل از خبرگزاری یونایتدپرس، کیم کوآنگ جین، محقق موسسه مطالعات استراتژیک امنیت ملی کره جنوبی گفت: وضعیت کیم جونگ اون، رهبری کره شمالی نرمال نیست. اواخر ۲۰۱۱ که زمام امور کشور را به دست گرفت، ۸۹ کلیوگرم بود. اما حالا تخمین زده می شود بین ۱۲۰ تا ۱۳۰ کیلوگرم وزن داشته باشد.

این تحلیلگر کره جنوبی ادامه داد: رهبری کره شمالی احتمالا از استرس زیادی رنج می برد و شواهدی از مصرف بالای الکل و استعمال زیادتر دخانیات وجود دارد. همچنین احتمال دارد وی دچار فشار خون بالا و مشکلات تنفسی باشد. استرس وی ممکن است از چالش های موجود در قدرت و خانواده اش ناشی شود.

وی گفت: اطلاعات مربوط به دولت و حکومت کره شمالی را از مردم عادی این کشور مخفی نگه می دارند بنابراین، نمی توان انتظار داشت که مسائل مربوط به وضعیت سلامت کیم جونگ اون علنی شو.

# آفریقا و هفتاد سال واحد پول مشترک

کشورهای آفریقایی ۲۶ دسامبر سال ۱۹۴۵ میلادی به یک واحد پولی مشترک رسیدند که به 'فرانک آفریقا' موسوم شد . این واحد پولی که به ابتکار دولت فرانسه ایجاد شد با گذشت دقیقا ۷۰ سال و به رغم بروز فراز و نشیب های اقتصادی هم در اروپا و هم در آفریقا توانسته است تا کنون در بسیاری از مناطق آفریقا به بقای خود ادامه دهد.

کشورهای آفریقایی 'بنین'، 'بورکینا فاسو'، 'گینه بیسائو'، 'ساحل عاج'، 'مالی'، 'نیجر'، 'سنگال'، 'توگو'، 'جمهوری آفریقای مرکزی'، 'چاد'، 'کنگو'، 'گینه'، 'گابون' و 'کامرون' از جمله کشورهای هستند که واحد پولی مشترک آفریقا همچنان براقتصاد آنان حاکم است.

بسیاری از کشورهای آفریقایی طی ۷۰ سال گذشته یکی پس از دیگری به استقلال دست یافتند و به تبع آن تلاش کردند از چتر اقتصادی کشورهای استمارگر نیز خارج شوند.

برای مثال با استقلال کشورهای غنا ، نیجریه و سیرالئون از استعمار انگلیس ، واحد پول پوند نیز از این کشورها رخت بربست ولی نکته حایز اهمیت اینکه واحد پولی 'فرانک آفریقا' که کاملا تحت نفوذ و مدیریت فرانسه است همچنان در بسیاری از مناطق آفریقا حکمفرماست.

از جمله ویژگی های واحد پولی مشترک آفریقا آن است که بانک مرکزی فرانسه پشتوانه آن محسوب می شود .

برمبنای همین ساختار و براساس توافقی ، از سال ۱۹۴۵ یعنی زمان شکل گیری واحد پولی مشترک آفریقا تا سال ۱۹۷۵ میلادی صد درصد ذخایر ارزی کشورهای آفریقایی دارای 'واحد پولی مشترک' در بانک مرکزی فرانسه نگهداری می شد.

این میزان از سال ۱۹۷۵ میلادی تا به بعد به ۶۵ درصد کاهش یافت و در سال ۲۰۰۷ میلادی براساس توافق جدیدی ۵۰ درصد ذخایر ارزی کشورهای آفریقایی دارای واحد پولی مشترک در بانک مرکزی فرانسه نگهداری می شود.

نکته جالب توجه دیگر در واحد پولی مشترک آفریقا این است که هریک از کشورهای عضو این توافق می توانند تصاویر و طرحهای مورد نظر خود را بر روی پول ملی خود درج کنند ولی ارزش هر واحد از این پولهای ظاهرا متفاوت با یکدیگر برابر است .

این وضعیت موجب شده که طی ۷۰ سال گذشته بخش عمده ای از ذخایر ارزی و پولی آفریقا در بانک مرکزی فرانسه نگهداری شود و برهمین اساس دولت فرانسه توانسته است نفوذ قابل ملاحظه ای بر اقتصاد و گردش پولی در آفریقا داشته باشد که بی شک منافع سرشاری از این طریق نصیب پاریس شده است.

آمار موسسات مالی مستقل بین المللی نشان می دهد که در سال ۲۰۰۵ میلادی بیش از ۳ هزار و ۶۰۰ میلیارد فرانک آفریقا معادل ۷۲ میلیارد یورو از ذخایر ارزی آفریقا در بانک مرکزی فرانسه نگهداری می شد و این به منزله

مدیریت اقتصادی بخش بزرگی از آفریقا توسط فرانسه است.

گرچه طی سالهای گذشته و با ورود فعال و گسترده چین به آفریقا و سرمایه گذاریهای عمده پکن در قاره سیاه رقیب بزرگی برای فرانسه در این منطقه ظهور کرده ولی پاریس تا کنون توانسته است بخش بزرگی از برتری اقتصادی خود را در کشورهای آفریقایی حفظ کند.

با این وجود به نظر می رسد که تمایل کشورهای آفریقایی برای همکاری با تمامی سرمایه گذاران از جمله چین از یک سو و نیز رقابت تنگاتنگ قدرتهای بزرگ از سوی دیگر، موجب خواهد شد آفریقا در آینده نزدیک به یک منطقه چند قطبی تبدیل شود و از حیطه نفوذ و انحصار یک یا دو قدرت خارج گردد.

در همین راستا 'آنگولا' از ابتدای ماه میلادی جاری 'یوآن' را به عنوان واحد پول دوم خود پذیرفت.

آفریقای جنوبی به عنوان نخستین شریک تجاری چین در قاره آفریقا و زیمبابوه نیز پیش از این، واحد پول چین را به عنوان واحد دوم پولی خود پذیرفته بودند.

این در حالی است که 'غنا' ، 'نیجریه' و 'جزیره' موریس نیز ذخایر ارزی خود را به صورت 'یوان' نگهداری می کنند.

این روند بیانگر آن است که 'یوآن' به تدریج در حال تبدیل شدن به واحد پولی فراگیر در آن دسته از کشورهای آفریقایی است که عضو واحد پول مشترک یعنی 'فرانک آفریقا ' نیستند.

چین از سال ۲۰۰۹ میلادی به عنوان نخستین شریک تجاری آفریقا وارد مبادلات اقتصادی این قاره شد. در سال ۲۰۱٤ میلادی مجموع مبادلات اقتصادی چین با کشورهای آفریقایی بالغ بر دوهزار و ۲۲۰ میلیارد دلار برآورد شده است که تقریبا ۲۰ برابر مبادلات اقتصادی این کشور با آفریقا نسبت به سال ۲۰۰۰ میلادی است.

## د همیشه اودس

## ساتلو ۱۳ برکتونه

۱ -هر اندام یی د الله ج ذکر کوی.

۲ -تکبیر اولی تری نه پاتی کیږی.

۳ -کله چی ویده کیږی نو ملائکی یی ساتنه کوی.

٤ -د رسول الله ص د سنتو پابندی به یی نصیب شی.

٥ -الله ج به یی فقیری لری او حاجت به یی پوره کړی.

٦ -په اسمان کی موجودی ټولی ملائکی ورته له الله ج نه د بښنی دعاگانی غواړی.

۷ -د مرگ پر وخت به یی غوږ کی داسی غیبی اواز وشی. ای زما بنده! غم او ویره مه کوه ځکه چی زه له تا نه راضی یم.

۸ -د مرگ سختی به پری اسانه شی.

۹ -د کرام الکاتبین ملائکو قلم به هر وخت د ته د ثواب په لیکلو بوخت وی.

۱۰ -الله ج به ورته د عبادت توفیق ورکړی.

۱۱ -زړه به یی هر یی هر وخت نرم وی.

۱۲ -د الله تعالی د نیکو بندگانو په صف کی به راپورته شی.

۱۳ -الله ج به پری د جنت هغه شراب وڅښی چی تر اوسه پوری یی مهر ندی لری شوی.

# دامير المؤمنين د ټاکنې په اړه

## د هيواد د وتلي، فقيه او محدث عالم

### شيخ القران والحديث مولانا محمد اسماعيل رحماني صاحب تحقيقي بيان

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله وکفى والصلاة والسلام على رسوله المصطفى وعلى اله واصحابه المجتبى

فأعوذبالله من الشيطن الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم

وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلاَئِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي الأَرْضِ خَلِيفَةً قَالُواْ أَتَجْعَلُ فِيهَا مَن يُفْسِدُ فِيهَا وَيَسْفِكُ الدِّمَاء وَنَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ قَالَ إِنِّي أَعْلَمُ مَا لاَ تَعْلَمُونَ صدق الله مولانا العلى العظيم.

قد قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: سَبْعَةٌ يُظِلُّهُمْ اللَّهُ فِي ظِلِّهِ يَوْمَ لا ظِلَّ إلا ظِلُّهُ : الإِمَامُ الْعَادِلُ ، وَشَابٌّ نَشَأَ فِي عِبَادَةِ رَبِّهِ ، وَرَجُلٌ قَلْبُهُ مُعَلَّقٌ فِي الْمَسَاجِدِ.رواه البخاري.

و قد قال عليه الصلاة والسلام: سُلْطَانُ العَادِلُ ظِلُّ اللَّهِ فِي الأَرْضِ؛ فَمَنْ أَكْرَمَهُ أَكْرَمَهُ اللَّهُ؛ وَمَنْ أَهَانَهُ أَهَانَهُ اللَّهُ.. رواه البهيقي.

وقد قاله عليه السلام: الْإِمَامُ جُنَّةٌ ، رواه البخاري.

ان الله وملائکته يصلون على النبي يا آيها الذين امنو صلوا عليه وسلموا تسليما.

اللهم صل على سيدنا وشفيعنا و مولانا محمد وعلى اله و اصحابه و ذرياته و اهل بيته اجمعين.

مولای صل وسلم دائما ابدا = على حبيبک خير الخلق کلهم

هو الحبيب الذي ترجى شفاعته = لکل حول من الاحوال مقتحم

اما بعد : محترمو مومنانو ورونو! په اسلام کې يوه اهمه او ضروري مسئله د امامت کبرى ده چې دا يوه اهمه او ضروري مسئله ده چې علماوو پرې اوږده اوږده بحثونه کړي دي، زه تاسې ته په مختصرو الفاظو باندې په لسو مادو کې د دې مسئلې تشريح کول غواړم، الله دې مونږ او تاسي ټولو ته پرې د عمل کولو توفيق راکړي.

اول : دا چې امامت کبرى څه ته ويل کيږي، دوهم : فضيلت د امام عادل ، دريم ؛ شرعا د امامت حکم يعني نصب الامام څه حکم لري، څلورم : حکم د امامت په شکل د کفايت سره ده او که په شکل د عين

سره ده، پنځم : د امام په نصب څوک مکلف دي ، که چا مخالفت وکړ نو څوک به گنهگاريږي، شپږم : نصب د امام څه حکم لري، دا حکم فوري ده او که باالتراخي ده، يعني ژر به امام درول کيږي او که به وخت ورکول کيږي، اووم : هغه خلک چې امام نصب کوي د هغو لپاره څه شرائط دي، اتم : دا چې د امام لپاره کوم شرائط دي، نهم : په يو ځای کې که درې ، څلور يا پنځه کسان د امامت لپاره وړ وبلل شي نو ترجيح به چا ته ورکول کيږ ي او لسم : طرق د نصب د امام.

دا څو خبرې دي چې کوښښ به وکړو چې په مختصر ډول يې بيان کړو.

اول : علماوو بيان کړی چې امامت کبرا څه ته ويل کيږي، الموسوعة د دين يو مشهور کتاب ده چې ډيرو لويو علماء کرامو تصنيف کړی ده، په هغه کې يې د امامت کبرا بهترين تعريف کړی ده.

الرياسة العامة في الدين والدنيا، خلافة عن النبي صلى الله عليه وسلم

امامت کبرا عبارت ده له هغې لويې مشرۍ نه چې دا مشري به هم په امورو د دين کې وي او هم به په امورو د دنيا کې وي، يعني رئيس عامه/ اميرالمؤمنين/ امام کبير مکلف ده چې د دين کارونه به هم برابروي او د دنيا کارونه به هم برابروي په داسې حال کې چې دی د نبي عليه السلام خليفه ده.

اوس دغه امير ته چې په رياست عظمی باندې مقرر شو، دې ته څه ويل کيږي؟، علماء بيان کوي چې دې سړي ته درې لفظونه استعماليدلی شي، امام هم ورته ويل کيږي، اميرالمؤمنين او خليفه هم ورته ويل کيږي، دا تعريف الموسوعة، الفقه الاسلامي او نورو علماوو هم رانقل کړی ده، علماء وايي چې دا الفاظ متصادقه دي خو مترادفه نه دي، چې په کوم څه امام کبرى صادقيږي په هغه اميرالمؤمنين او خليفه هم صادقيږي.

د امام فضيلتونه : نبي عليه السلام فرمايي : هغه ورځ چې ډيره سخته ورځ ده او هر سړی به په خپل غم کې وي، حتى روح او جسد به سره په مقابله کې وي، روح به وايي چې زه له بدن سره نه وم او بدن به وايي چې زه له روح سره نه وم، په هغه ورځ کې چې چا ته خوشحالی حاصليږي په هغو کې يو عادل امام دی، رسول اکرم صلى الله عليه وسلم فرمايي: سبعة يظلهم الله في ظله يوم لا ظل الا ظله، اوه ډلي دي چې الله تعالى به يې د عرش عظيم تر سيوري لاندې کينوي، هغه سيوری چې تر هغه علاوه بل سيوری نشته، يو له هغو نه عادل امام دی، د عادل مطلب دا چې د هر چا د حق خيال ساتي، حقوق ورکوي، د ظالم دظلم مخه نيسي- او په مظلوم باندې لاس نيسي، د عالم، عام سړي، مجاهد، يتيم او کونډې حيثيت ساتي، دې ته امام عادل وايي، الله جل شانه دې ته دا منقبت ورکوي چې د قيامت په ورځ به د عرش عظيم تر سيوري لاندې وي.

نبي عليه السلام فرمايي: الامام العادل ظل الله في الارض، عادل امام په ځمکه کې د الله تعالى رحمت دی، دې کې شک نشته چې په کوم ملک کې عادل بادشاه وي، دا ملک ظاهرا او باطنا برابر وي، امن وي، کفار هلته ممنوع وي او د مسلمانانو حقوق ټول مکمل او پوره وي، نو دا رحمت ده، دې کې شک نشته.

نو رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي چې تاسي د دې عادل امام عزت کوئ: فمن اکرمه اکرمه الله، چا چې د امام عامة عزت وکړ، عزت دا معنى چې ويې مني او بيعت ورسره و کړي، نصرت ورسره وکړي، د امير او د باچا اعزاز دا ده چې هغه ته دعاگانې وکړي، غيبت يې

ونه کړي، په هغه باندې خروج ونه کړي او مقابله ورسره ونه کړي، دا د امام عزت او اکرام ده، نو نبي علیه السلام فرمایي چې څوک د امام او سلطان اکرام وکړي نو الله تعالی به هغه سړی مکرم کړي.

دلته دوه احتمالونه دي، لومړی دا چې اکرمه الله یا خبر ده، یعني جمله خبریه ده، په خپل حال پاتې ده او یا خبریه ده خو په معنی د دعا ده، دواړه صحیح کیږي، نبي علیه السلام دعا کوي چې چا د امیر عزت وکړ الله تعالی دې یې عزت وکړي، د نبي علیه السلام دعا مستجابه ده، نو چا چې د امیر اکرام وکړ الله تعالی به په دنیا کې هم عزت ورکوي او په اخرت کې هم، او یا اخبار ده، نبي علیه السلام فرمایي چې څو ک د امیر اکرام وکړي الله جل جلاله به یې اکرام وکړي، نو د الله تعالی اکرام دا ده چې په دنیا کې به په امن وي، په دین کې به یې کمال وي، له ظالمانو په خلاص وي او په اخرت کې دا ده چې جنت ته به یې داخل کړي، او نبي علیه السلام وایي څوک چې د امیر اهانت وکړي، د امیر اهانت دا ده چې بیعت نه ورسره کوي، نصرت یې نه کوي، دعا نه ورته کوي، په امیر پسې خبرې کوي او د امیر په مقابل کې باغیان تقویه کوي، نو نبي علیه السلام وایي چې: اهانه الله، دی به په دنیا کې هم بې عزته کیږي او په اخرت کې به هم سپکیږي، یعني دوزخ ته به داخلیږي.

امیر ته الله تعالی ډیر عزت ورکړی، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: الامام جنة. یعني امام سپر ده، مطلب دا چې د ظالمانو او دښمنانو ظلم بندوي او توري بندوي، په ده باندې اثر نه راځي، نو دی داسې حیثیت لري لکه سپر، نو چیرته چې صحیح امام حاکم وي نو هغه ملک به له کفارو او ظالمانو محفوظ وي، هلته به اسلام حاکم وي، امن به وي، د ظالمانو لاس به نیولی وي او په مظلومانو به لاس راکش کول وي، الله جل شانه امیر ته ډیر عزت ورکړی ده نو اکرام او عزت ضرور ده.

اوس خبره دا ده چې د امیر جوړول څه حیثیت لري او په اسلام کې څه حکم لري؟، علامه نسفي په عقائد نسفي کې بیان کوي چې د امیر جوړول د مؤمنانو لپاره د وجوب حیثیت لري، دی لیکي: لا بد لهم من نصب الامام، لتنفیذالاحکام و اقامة الحدود، و سد الصغور، و اخذ الصدقات، او....، دلته لابد لفظ ویل شوی، دا لفظ په واجبو امورو کې استعمالیږي، نسفي صاحب په عقائد نسفي کې بیان کوي چې د شرح عقائد په ۱۱۰ صفحه کې دا لیکل شوي چې د مومنانو لپاره ضرور ده چې خامخا به امام جوړوي، دا په مرتبه د وجوب کې ده، علامه تفتازاني رحمه الله د شرح عقائد په ۱۱۰ صفحه کې لیکي چې نصب د امام واجب دي، ده د وجوب لپاره اجماع دلیل وړاندې کړی ده، فرمایي چې د ټول امت اجماع ده چې د امام تقرر واجب دی، خامخا به امام مقرریږي، که څوک امام ونه دروي نو دا خلک گنهگاریږي، علامه نووي رحمة الله علیه د مسلم شریف د شرحې په ۱۲۰ صفحه کې لیکي چې نصب د امام واجب ده، وجوب یې په اجماع د امت سره ده، علامه ماوردي رحمه الله د احکام سلطانیة په ۵مه صفحه کې دا بیان کړی ده چې په اجماع باندې ثابته ده چې د امام درول په مؤمنانو باندې واجب ده، علامه قرطبي رحمه الله په خپل تفسیر کې په صفحه ۲٦۴ او ۲٦۵ کې بیان کړی چې په مؤمنانو باندې واجب ده چې نصب د امام به کوي، او دا وجوب یې هم په اجماع سره ده او د موسوعة د دریم جلد په ۲۱۷ کې هم همدا بیان رانقل شوی او په ډیرو کتابونو باندې حوالې ورکړل شوې دي، لیکلي یې دي چې نصب د امیر او امام په مؤمنانو باندې واجب ده او وجوب یې په اجماع د امت سره

ثابت دی، اجماع د امت له دلایل اربع نه یو قطعي دلیل دی، او نورو فقیهو علماوو هم په دې اړه بیانونه کړي دي خو موږ په دې باندې اکتفی کوو.

اوس راځو دې ته چې دغه وجوب کفایي ده او که عیني ده، په هر سړي لازم ده او که نه، لکه د جنازې لمونځ دغسې ده او که د صلاة ظهر غوندې ده، صلاة ظهر په هر مکلف مومن باندې لازم ده او صلاة جنازه بیا په هر سړي نه ده لازم، ټول علماء کرام وایي چې دا واجب کفایي ده، علامه ماوردي رحمه الله لیکي چې واجب کفایي ده، په ټولو نه بلکه په بعضو باندې لازم ده، که بعضي پرې عمل وکړي او امام قایم کړي؛ د نورو غاړې پرې خلاصې دي، د موسوعې د دریم جلد په ۲۱۷ صفحه کې لیکي چې دا واجب ده خو کفایي.

اوس خبره په دې کې ده چې اقامت یې هر مومن کولی شي؟، علماء وایي چې داسي نه ده چې هر مومن کولی شي امام ودروي، داسي نه ده بلکه دوه ډلې په دې باندې مکلفې دي، هغه اهل اختیار، یعني هغه چې شریعت ورته د امام درولو اجازه وکړي چې اهل حل والعقد ورته ویل کیږي او بل هغه کسان چې اهلیت د امامت پکې وي، مثلا لس کسان دي، په دوی کې هر یو د امام کیدو اهل ده، او بل اهل حل والعقد مثلا لس زره کسان دي، دوی هر یو د کولی شي چې د امام انتخاب وکړي، په دوی کې که لس کسان، شل یا سل کسان دا کار وکړي، د نورو غاړې پرې خلاصې دي، او که لس یا پنځلس کسان چې د امامت اهل دي او یا لس زرکسان چې د امام د انتخاب کولو اهل دي، دوی که ټول غلي کیني نو د ټولو غاړې بندي دي، نو د امام په انتخاب خاص کسان مکلف دي؛ ځکه دا د هر چا کار نه ده بلکه د خاصو خلکو کار ده، علماوو د دې بیان کړی ده، مسوعې د جلد ثالث په ۲۱۷ کې دا خبره کړې او ماوردي صاحب د احکام سلطانیه په ۵ او ٦ صفحه کې دا بیان کړی.

اوس خبره دا ده چې پخوانی امام وفات شو یا معزول شو یا په یو شکل د اشکالو مخکینی امام ختم شو؛ نو انتخاب د امام واجب فوري ده او که واجب بالتراخي ده؟، علامه قرطبي او علامه ماوردي رحمهم الله فرمایي چې دا واجب فوري ده او وخت ورکول پکې روا نه دي، اهل حل والعقد او د امامت اهل خلک دا حق نه لري چې ټیم ورکړي او ووایي چې یوه میاشت یا زیات وخت ورته وګورو او مشورې پکې وکړو، په دې ډیر دلایل دي، یو دا چې رسول الله صلی الله علیه وسلم له رحلت مخکې داسي خبرې کړې چې هغه د ابوبکر صدیق رضی الله عنه په امامت باندې دال دي، نبي علیه السلام حکم وکړ چې د مسجد نبوي ټولي دروازې بندې کړئ، یوازي خوخا دروازه چې د ابوبکر صدیق رضی الله عنه دروازه وه، هغه دي خلاصه وي، محدثین حضرات له دې نه دا استنباط کوي چې د نبي علیه السلام له وفات وړاندې دا خبرې په دې باندې دلیل شو چې ابوبکر صدیق رضی الله عنه به خلیفه کیږي، نو نبي علیه السلام مخکي له مخکې داسي اشارې وکړې، دا اشاره دې ته ده چې امام درلود او د امیر انتخاب بالفور ضروري ده، او بل امام بخاري صاحب حدیث رانقل کړی چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلي چې: ما قصد وکړ چې ابوبکر صدیق او د هغه زوی را وغواړم او وصیت ورته وکړم خو بیا دا خبره راته واضحه شوه چې الله تعالی کومه اراده وکړي هغه اراده یې نه بدلیږي، نو الله تعالی له ابوبکر صدیق رضی الله عنه نه خبره بلې خوا ته نه اړوي، مومنان بل څوک نه مني، نو له دې وجې مي دا وصیت ونه کړ، علماء کرام استنباط کوي چې دا د ابوبکر صدیق رضي الله عنه ته اشاره ده،

نشئ تعینولی، هغو ورته وویل چې ( منا امیر ومنکم امیر )، یو امیر به ستاسې وي او بل زموږ، ابوبکر صدیق رضی الله عنه ورته وویل چې امیر به یو وي او له موږ نه به وي، ما له نبي علیه السلام نه اورېدلي چې امرا به له قریشو وي، هغوی ټول تابع شول، في الحال بیعت وشو او خلیفه تعین شو نو پس له هغه نه جنازه او تدفین وشو، دا ټول په دې لاندې دلایل دي چې فوریت لازم دی، او علامه قرطبي رحمه الله د خپل تفسیر په اول جلد کې رانقل کړي چې امیر د مومنانو په کومه علاقه کې اوسیږي او وفات شي نو د هغې نژدې علاقې علماء او اهل حل والعقد به راجمع شي او امیر به تعین کړي، نو له دې ټولو نه معلومیږي چې فوریت لازم ده وخت ورکول غلط ده، نو اوس که څوک وایي چې په دې کې باید ټیم ورکړو، تغیر ورکړو نو په دوی کې خو یا دا ده چې مطالعه یې نه ده کړې او یا دا چې تجاهل کوي، خامخا په دې دوو کې یوه خبره شته، یا یې مطالعه نه ده کړې او حدیثو ته نه دي متوجه شوي او یا دا ده چې تجاهل کوي، خبر دي خو قصدا داسې کوي، داسې باید ونشي، سړی باید حق ته تابع شي، امیر في الحال باید تعین شي؛ ځکه په تاخیر کې خامخا فساد راځي، یوه ډله هلته، بله هلته او بله هلته راپورته کیږي؛ نو فتنه او فساد راځي او د مومنانو اتفاق او اتحاد ختمیږي؛ نو په دې کې تعجیل ضرور ده او تاخیر نه ده روا.

د امیر د تعین لپاره اکثرو علماء کرامو دوه طریقې رانقل کړې دي؛ مگر علامه قرطبي، ماوردي او د مسوعې علماء کرامو رحمهم الله درې طریقې ښیي خو علامه قرطبي یوه طریقه بله هم زیاتوي او څلور یادوي.

علامه ماوردي او موسوعه په دوو طریقو کې یوه دا ښیي چې مخکینی امیر یو کس د امارت لپاره تعین کړي، دا په اجماع د امت سره ثابته ده چې هیڅ شک پکې نشته، دوهمه طریقه دا چې شورا تعین کړي او هغه بیا امیر مقرر کړي لکه د عمر رضی الله عنه په کیسه کې چې یاده شوه او بله طریقه دا چې اهل الحل والعقد امیر تعین کړي، دا درې طریقې علماء کرامو رانقل کړې، خو علامه قرطبي رحمه الله څلورمه طریقه دا ذکر کړې ده چې یو کس په زور یوه باچایي ونیسي. دا باچا داسې سړی وي چې د کفر شائبه پکې نه وي، نور که فاسق او یا گنهگار هم وي، نو ده چې کله تغلب حاصل کړ نو دی امیر دی، علامه قرطبي او نور علماء کرام وایي چې که دی امیر نشي او بیعت ورسره ونشي نو له دې فتنې نه نورې فتنې پیداکیږي او اختلافات زیاتیږي، نو خلک به د فتنو د زیاتیدو د مخنیوي لپاره له دې امیر سره بیعت کوي.

نو د امیر د ټاکلو یوه طریقه دا ده چې اهل حل او عقد به یې ټاکي، اهل حل والعقد هغه کسان دي چې دغه شرطونه پکې وي، اول دا چې عادل به وي، فسق به یې نه وي معلوم او د دین خلاف کارونه به نه کوي، دوهم دا چې د امام په شروطو علم لري او دریم دا چې مدبر به وي او د دنیا په کارونو به هم پوهیږي، دا درې شرطونه چې په هر چا کې وي هغه د اهل حل والعقد او صاحب اختیار کیدلی شي، هغه که لوی عالم مدرس وي او که نه وي خو له مخورو څخه وي.

او د امیر لپاره شرطونه علماء کرامو یو څو شرطونه اتفاقي بیان کړي دي، لومړی دا چې مسلمان به وي، دوهم دا چې نارینه به وي، دریم دا چې مکلف، یعني بالغ او عاقل به وي، څلورم دا چې حر، یعني ازاد به وي، پنځم شرط یې کفایت ده، یعني د ملک کارونه به کولی شي، دا کفایت عام ده که خپله یې کولی شي او که یې د مرستیال او معاون په واسطه کولی شي.

او د کفایت شرطونه بیا دا دي چې سیاسي انسان به وي، شجاعت به لري، علم به ورسره وي، د کفارو مقابله به کولی شي، دغه هغه اتفاقي شرائط دي.

علما بیان کوي چې په یو ملک کې درې یا څلور داسي کسان وي چې په یادو شرطونو پوره وي نو په دوی کې به څوک انتخابیږي؟، دوی بهترینې خبرې کړي دي، که داسي وي چې په هغه ملک کې جهاد راوان وو او جرأت ده ضرورت وو؛ نو دلته به په دوی کې باجراته سړی او ډیر شجاع سړی مقرریږي، علمیت ته به یې نه کتل کیږي بلکه جرأت ته به ترجیح ورکوي، او که داسي وي چې په یو ملک کې فتنې، بدعتونه او اختلافونه زیات پیدا شوي وو نو په دې صورت کې به هغه څوک امیر ټاکل کیږي چې ښه علمیت لري او قوي عالم وي، او که په دې ټولو کې سره برابر وو نو بیا به مشر غوره کیږي او که په دې کې هم سره برابر وو نو بیا به هغه څوک امیر ټاکل کیږي چې ملګري ډیر لري او اتباع یې ډیر وي.

اوس خبره دا ده چې کوم کسان امیر ټاکي، یعنې اهل الحل والعقد، په دوی کې اندازه او عدد شته که نشته، یو قول داسي را نقل شوی چې په دوی کې به د ټولو اطرافو اهل حل او عقد خلک وي، خو دا قول د ټولو علماء کرامو په نزد مردود قول ده، دوی وایي د ټولو اطرافو اهل حل او عقد ضروري نه دي بلکه هغه کسان چې ټولیدل یې په اسانه سره کیدلای شي، هغه که لږ وي او که ډیر وي، دا کفایت کوي، د دې کسانو په تعداد کې هم قولونه دي، لومړی دا چې دوی به ۴۰ کسان وي، دا قول هم رد شوی، بل دا دی چې ۵ کسان به وي، بل قول دا دی چې ۱ سړی هم کفایت کوي، احناف وایي چې څو کسان به وي خو متعین عدد ضروري نه ده، که ۵ وو که ۱۰ وو او که ۲۰ وو؛ نو دا کافي دي د امیر د تعین لپاره.

ټولو علماء کرامو رانقل کړي چې کله امیر تعین شو نو بیا یې په ټولو مومنانو بیعت او اطاعت واجب ده، که څوک یې اطاعت نه کوي هغوی عاصیان دي، ځکه مخالفت کوي له واجبو نه، مخالفت کوي له اجماع نه او مخالفت کوي د نبي علیه السلام له قول نه، هغه فرمایي: اسمعوا و اطیعوا و ان استعمل علیکم عبد حبشي رأسه کزبیبة، نبي علیه السلام وایي چې که په تاسي باندې امیر مقرر شو هغه اګر که حبشي- وي تک تور وي او سر یې هم وړوکی وي نو د دې به خامخا خبري اورئ او اطاعت به یې کوئ.

اوس به اخیري خبرې ته راشو، په دې اواخرو کې امیرالمومنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله وفات شو، امیر ته اشد ضرورت ده، اهل حل والعقد علماء را ټول شول چې تعداد یي شلوکسانو ته رسیده، دوی ملا اختر محمد منصور حفظه الله د امیر په توګه تعین کړ، اوس دې ته ګورو چې د ده تعین بالکل شرعي حیثیت لري؛ ځکه د امام شرائط پکې موجود دي، مسلمان ده، حر/ازاد ده، مکلف ده او د باکفایتی امتحان یې ورکړی، علم لري او ملګري یې هم قوي خلک دي، دی په شرحي حیثیت کې امام ده او د امام شرائط پکې موجود دي.

منصور صاحب چې هر چا تعین کړی دی، هغه خلک علماء دي، د همدې وخت زبدة خلک دي، عادلان دي، عالمان دي او مدبرین دي، په دې ټولو اړخونو کې یې امتحان ورکړی، نو دې کې شک نشته چې منصور صاحب شرعي امیر دی، اوس په ټولو خلکو د ده اطاعت او بیعت واجب دی، که څوک مخالفت کوي هغه بې له شک او شبهې نه په حرامو کې ده، او که څوک په دې کې څه خبره لري چې دا ستا خبره غلطه ده نو دا

گز او دا میدان، کتابونه به راواخلو، کتاب نه زما خیال او پروا ساتي او نه ستا، بس په کتاب به کینو، که په کتاب کې پړ شوو نو بس بیا چې څوک څه وایي او مخالفت کوي، بالکل موږ ورسره یو او که پړه شول نو باید له دې مخالفت نه لاس واخلي، دا اجتماع دې نه خرابوي او دا پاکې ویني چې په اسلام باندې تویه شوې دا دې نه خرابوي، او که مخالفت کوي نو ټوله مظلمه په دوی باندې ده، بس دوی او الله تعالی یې سره پوهیږي.

دا زما څو خبرې وې چې تاسي ته مې وکړي، دا مې ذمه واري وه، دا د هر عالم ذمه واري ده چې باید پوره یې کړي، الله تعالی دې موږ ټولو ته په دې خبرو باندې د عمل توفیق راکړي او الله تعالی دې ټولو ته د خپل امیر ښه اطاعت ورکړي او الله تعالی دې امیر ته توفیق ورکړي چې په صحیح طریقه د مسلمانانو، مجاهدینو او اسلام خدمت وکړي.

سبحان ربک رب العزة عما یصفون وسلام علی المرسلین والحمد لله رب العلمین.

# غوره وینا

ابو دردا رضي الله عنه دمرک په مهال کي وویل: زه تاسو ته یو حدیث بیانوم کوم چی ماله رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اورېدلي دی، نبی علیه السلام وویل: دالله جل جلاله بندگی داسی کوه، لکه چی ته هغه وینې، که داسی کیفیت ستا په برخه نشي،نو بیا په خیال کی داسی ساته، چی الله جل جلاله تا ویني، خپل ځآن په مړو کی شمېر کړه، خپل ځان په ژوندیو کی مه شمېر ه، چی بیا نه په کوم خبره خوشحالېږې اونه په کومه خبره غمجن کېږې، دمظلوم له ښېرا څخه ځان وساته، ځکه چی دمظلوم ښېرا سمدستی قبلیږي، په تاسو کی چه څوک دماخستن اودسهار لمانځه ته په هرڅومره تکلیف کی هم په جماعت کی گډون کولایشی، ودی کړی. (رواه الطبرانی،۶/۱۶۵)

## علامه جلال الدین سیوطي رحمة الله علیه

په ۹۱۱ هجري کې وفات شوی. فرمایلي یې دي. چې ۹ سورتونه بنده له ۹ شیانو نه بچ کوي.

۱ -سورت الفاتحه سړی د الله تعالی له غضب نه ساتي.

۲ -سورت یاسین سړی د قیامت په ورځ له تندې څخه ساتي.

۳ -سورت الواقعه سړی له غریبۍ او فقر څخه ساتي.

۴ -سورت الملک ( تبارک الذي) سړی د قبر له عذاب څخه ساتي.

۵ -سورت الکوثر سړی د دښمنانو له دښمنۍ څخه ساتي.

٦ -سورت الکافرون سړی د مرگ پر وخت له کفر څخه ساتي.

۷ -سورت اخلاص ( قل هو الله احد) سړی له منافقت څخه ساتي.

۸ -سورت الفلق سړی د حسد کونکو له حسد څخه ساتي.

۹ -سورت الناس سړی له وسوسو څخه ساتي.

( د علم او حکمت ویناوې)

# غربي اشغالګر

## او په اسلامي نړۍ کې د تعلیم سیکولریزه کول

لیکنه: مولوي عبدالهادي (مجاهد)

د تعلیم عملیه او تعلیمي نصاب د نسلونو د جوړولو قالب دی، او قالب چې هر شکل ولري په هغه کې اچول شوی شی به هم په هماغه شکل راوځي. دا نامعقوله ده چې قالب دې مستطیل شکل ولري، خو څوک دې له هغه څخه د دایروي شي د جوړېدلو تمه وکړي. که تعلیمي نظام او نصاب د غرب په خوښه جوړ شوی وي نو په طبیعي ډول به د هغه نصاب لوستونکي د غرب پر لاره ځي. او که نصاب د اسلام مطابق جوړ شوی وي، نو لوستونکي به یې هم د اسلام پر لاره ځي.

غربي هېوادونه چې څومره د مسلمانانو له جهاد څخه په وېره کې دي په هماغه اندازه په اسلامي نړۍ کې د پوهې او ویښتیابه له خپرېدلو هم په وېره کې دي.

همدغه سبب دی چې هر کله غربي استعمار کوم اسلامي هېواد لاندې کړی نو تر هر څه دمخه یې دهغه هېواد تعلیمي نصاب دخپلو اهدافو د خدمت لپاره عیار کړی او د نصاب مضامین او مفرادت یې په داسې ډ ول انتخاب کړي چې لوستونکي یې باید په پوره اخلاص د استعمار په خدمت کې پاتې شي، او نور هېڅ ډول مفکوره او د آزادۍ احساسونه لري.

دتعلیم له لارې د ولسونو په اشغالولو کې په هندوستان کې د برطانوي استعمار د تعلیمي نصاب د بنسټ ایښودونکي (لورد میکالي) استراتیژي ډېره واضحه وه چې ویل به یې: (مونږ باید په هندوستان کې داسې یو نسل وروزو چې وینه اوجسم یې هندوستانی، خو فکر، فرهنګ او اراده یې انګلیسي وي، ترڅو د هندوستان دنیمې وچې د پراخو پرګنو په تسخیرولو کې زمونږ خدمت وکړای شي ).

د عربي نړۍ د تسخیر لپاره هم انګریزي استعمار د تعلیم له وسیلې څخه کار واخیست. کله چې په ۱۸۸۲م کې مصر د انګریزانو په لاس سقوط وکړ، نو د انګلستان د هغه وخت حکومت د مصر له انګریز حاکم (لارډ کرومر) څخه وغوښتل چې په مصر کې د انګریزي تسلط د ټینګولو لپاره یې چې هر څه ته ضورت وي د برتانیې له مرکزي حکومت څخه دې یې وغواړي.

د دې پر ځای چې (لارډکرومر) د برتانیې له حکومت څخه پوځي وسائل او پوځونه وغواړي هغه ورڅخه د (تعلیم ماهرین) وغوښتل. د برتانیې حکومت د (لارډ کرومر) د غوښتنې په ځواب کې هغه ته (ډوګلاس ډنلوپ) چې د لاهوت (مسیحي دینیاتو) د شاهي فاکولتې فارغ التحصیل مسیحي عالم وو ورولېږه.

(ډوګلاس ډنلوپ) د مصر لپاره داسې یو د تعلیم نظام او نصاب جوړ کړ چې هم یې د (الأزهر) د تعلیمي او

معنوي تأثير مخه ورباندې ونيوله، او هم يې د وخت په تېريدلو په مصر کې د داسې يونسل روزنه او پالنه وکړه چې د مصر راتلونکې يې له اسلامه بيګانه او د انګريز په رنګ کې رنګ کړ. او کله چې د مصر۔ تعليمي نصاب سيکولر (بې دينه) شو نو په هغه پسې تقريباً د ټولې عربي نړۍ تعليمي نصابونه (سيکولر) شول، او حکومتونه يې هم د غرب پر لاره روان شول، چې تر ننه لاهم روان دي.

د همدغې استراتيژۍ پر اساس په نولسمې او شلمې ميلادي پېړۍ کې استعماري دولتونو لکه برتانيې، فرانسې، روسيې، پرتګال، هسپانيې او ايټاليې د اسلامي نړۍ په خپلو مستعمراتو کې داسې نسلونه وروزل چې د مستقيم استعمار تر ختمېدو وروسته هم د سلګونو کلونو لپاره په خپلو هېوادونو کې د استعماري سياستونو د تطبيق او دوام ضمانت ورکوي، او همدغه د استعمار په نصاب روزل شوی نسل د اسلامي شريعت او اسلامي ارزښتونو په له منځه وړلو کې تر استعماري ځواکونو زيات فعال او سخت زړي دي.

د دغې استعماري تعليمي استراتيژۍ نتيجه دا راووتله چې هر څومره چې په اسلامي هېوادونو کې مکتبونه، پوهنتونونه او نورې تعليمي ادارې ډېرېږي په هماغه اندازه خلك له اسلام څخه لرې کېږي او ټولنې د اخلاقي لويدنې په لور سوق کېږي، او حاکمان يې چې د همدغو استعماري نصابونو حاصل دي غلامۍ ته پر ازادۍ ترجيح ورکوي، او ټول هغه خلك چې د ازادۍ پر لرلو تأکيد کوي او کار ورته کوي په ارتجاع، بنسټ پالنې او له تمدن څخه په ليرې والي تورن کېږي، چې سزايې پرته له زندان، تبعيد او قتل بل څه نه وي.

د دې لپاره چې غرب د ټولې اسلامي نړۍ د هېوادونو په تعليمي نصابونو کې د اسلام تاثير له منځه وړی وي، او يا يې لږ ترلږه کم کړی وي نو د ملګرو ملتو نړيواله مؤسسه يې وکاروله، او په ۱۹۷۷م کال کې د يونسکو (د ملګرو ملتو د تعليم او فرهنګ د څانګې) په چوکاټ کې يې يوه تعليمي اداره جوړه کړه چې نوم يې (اسلام او غرب) وو. د دې ادارې مشري په ملګرو ملتو کې د برتانيې پخواني سفير(لارډ کارادون) کوله. دې ادارې ۳۵ غړي لرل چې ۱۰ يې د اسلامي ممالکو د (سيکولرو) حکومتونو استازي ول او پاتې ۲۵ يې د اسرائيلو او غربي هېوادونو غړي ول.

د (اسلام او غرب) دغې ادارې پدې موضوع کار کاوه چې څنګه په تعليمي نصابونو کې د اديانو ترمنځ په مشترکو نقطو ترکيز وکړي، او په نصابونو کې د داسې مضامينو او مفاهيمو مخنيوی وکړي چې (دين) ورکې د (سلوک) لپاره معيار ټاکل کېږي.

دې ادارې د ټولو اسلامي هېوادونو نصابونه پداسې ډول جوړ کړل چې د اسلام تاثير ورڅخه له منځه يوسي او يا يې تر ممکنه حده کم کړي. او د اسلام په عوض ورکې نور نظريات لکه (قوميت) (وطنيت)،(ژبپالنه) او داسې نور په تعليمي نصابونو کې د ملي ايډيالوژيو په حيث ورشامل کړي.

د دې ادارې د فعاليتونو يو مثال په مصر کې دا وو چې د نصاب تر تبديلۍ دمخه د مصر د نصاب د تاريخ په مضمون کې د (فرعوني تاريخ) برخه يوازې ۷۵ صفحې وه، خو تر تبديلۍ وروسته ۳۱۷ صفحوته پورته شوه.

او همدارنګه تر تبديلۍ دمخه په نصاب کې د اسلامي تاريخ برخه ۲۰۷ صفحې وه ، خو تر تبديلۍ وروسته دغه برخه ۳۵ صفحو ته راکښته شوه.

همدغه فارموله تقريباً په ټولو اسلامي هېوادنو کې تطبيق شوه، ځکه چې د نه تطبيقولو په صورت کې

هېوادونه د(يونيسکو) له سازمان څخه وېستل کېدل، او شهادتنامو يې په غربي نړۍ کې خپل (قبوليت) له لاسه ورکاوه.

پورتنيو حقيقتونو ته په پام سره ويلی شو چې رسمي تعليمي نظام په اسلامي نړۍ کې د غرب تر ټولو خطرناکه وسيله ده.او تر څو چې دغه وسيله د غرب په خوښه چلېږي نتائج به يې هم هغه ډول راوځي چې غرب يې غواړي.

په اسلامي نړۍ کې د غرب لپاره د غربي ډوله تعليمي نصاب او نظام د افاديت په اړه د امريکا يو مهم پاليسي جوړوونکی شخصيت دواشنګټن د نړدې ختيځ لپاره دستراتيژيکو مطالعاتو دانسټيټيوټ پخواني مدير (رابرټ سوتلوف) چې د امريکا حکومت ته د اسلامي هېوادونو په اړه پاليسۍ جوړوي او د امريکا د نويو محافظه کارانو (مسيحی افراطيانو) له ډلې څخه دی په اسلامي نړۍ کې د تعليم په اړه وايي :

په عربي او اسلامي نړۍ کې امريکايي تعليمي ادارې يوازې د لوړې سويې تعليمي ادرې ندي، بلکې هغه د عربي او اسلامي ټولنو د امريکايي کولو لپاره د امريکا د استراتيژيکې جګړې سرّي (پټ) لښکر دی).

د (رابرټ سوتلوف) دغه امريکايي پټ لښکر رښتيا هم ټوله اسلامي نړۍ له جګړې پرته د امريکا لپاره فتح کړه، ځکه چې دغه تعليمي نظام د مسلمانانو له نويو نسلونو څخه حقيقي اسلام پټ کړ، او د هغه پر ځای يې داسې يو څه د اسلام په نامه ورته معرفي کړل چې هغه يا اصلاً اسلام ندی، او يا يو تحريف شوی، مسخ شوی او د غرب په خوښه برابر شوی اسلام دی.

غرب د مسلمانانو د تعليمي نصابونو په بدلولو کې د روسانو په څېر له بيړې کار نه اخلي، بلکې د هغه انګريزي متل مطابق چې وايې : (کار په کراره کوه خو پداسې شکل چې تاثير يې يقيني وي) په کراره او تدريج سره د مسلمانانو د تعليم او تربيې نصابونه بدلوي.

غربي استعمارګرو هېوادونو د (يونسيکو) او نورو مؤسساتو په توسط د اسلامي هېوادونو په نصابونو او تعليمي نظام کې څو اساسي تغيرونه راوستل چې ځينې يې په لاندې ډول دي:

۱ - په مسلمانو هېوادونو کې د غربي ژبو او ادبياتو خپرول او بيا همدغه ژبې د تعليم او سياست ژبې ګرځول. غرب لدې لارې خپل ټول سياسي، اجتماعي، اخلاقي او فلسفيانه مفاهيم او نظريات د مسلمانانو د نوي نسل مخې ته کېښودل، او نوی نسل يې ورباندی له اسلام، اسلامي تاريخ، اسلامي تمدن او اسلامي ټولنيزو ارزښتونو مصروف کړ، چې په نتيجه کي غربي فرهنګ او معلومات ورته اصل وګرځېدل، او اسلامي معلومات ورته داسې يو څه وګرځېدل چې د دوئ په اند په عملي ژوند او پرمختګ پوري اړه نه لري.

۲ - په نصابونو کې د ديني او اسلامي ټولنيزو مضامينو اندازه لږ کړای شوه، او د هغو پر ځای رسم، هنر، غربي ډوله مدني او اجتماعي زده کړو او د غرب تاريخ او پرمختګونو ته ځای ورکړ شو.

۳ – د ژبې او ادبياتو کتابونه يې له ديني موادو او مفاهيمو خالي کړل، او ديني مفاهيم يې په بې کيفيته، بې روحه او بې واقعيته شکل يوازې د (دينياتو) په کتابونو کې محدود کړل.

۴ – له نصابونو څخه داسلام فتوحات، پر نړۍ د اسلامي تمدن احسانونه او د اسلام د مشاهيرو په هکله معلومات ليرې شول، او پر ځای يې د اروپا او امريکا تاريخ، د غرب لشکر کشۍ، د غرب مشاهير، فيلسوفان،

شاعران، مخترعین ، سیاسي مشران او پوځي افسران د مسلمانانو نویو نسلونو ته د (ماډل) په حیث معرفي شول.

د غرب دې ټولو تعلیمي هڅو اسلام په یوه نیمګړي، تحریف شوي او بېرته پاتې شکل نوي نسل ته تقدیم کړ، چې نتیجه یې له اسلام سره د نوي نسل په (بې رغبتۍ) کې راووتله. او دا طبیعي خبره ده چې که یو څوک د یو څه په اړه بې رغبته وي نو ولې به له هغه څخه د دفاع په لار کې قربانۍ ته حاضرېږي؟

د شلمې پېړۍ له پیل راهیسې چې امریکا پر اسلامي نړۍ او په عمومي ډول پر شرق د تسلط کومې هڅې پیل کړې دي په هغو کې یې په مسلمانانو کې د سیکولر (لادین) تعلیم د مسلط کولو خطرناکې هڅې هم پیل کړې دي چې پدې کار کې تر اروپایي استعماري هېوادونو هم ډېر مخته تللې ده.

امریکایانو د اسلامي نړۍ د تعلیم او تربیې تقریبا ټول وزارتونه دېته اړویستلي دي چې خپل نصابونه، لوائح، قوانین او تعلیمي ماحول پر سیکولر (په دین نه ولاړ) بنسټونو ودروي، څکه هغوئ پوهېږي چې همدا دین دی چې خلك د غرب د ملحدو نظریاتو او د استعمار د امپریالستي پراخ غوښتنې په خلاف دروي او د مقاومت توان وربښي.

امریکا د افغانستان له اشغالولو وروسته دلته هم همدغه چاره تر سره کړه، او د خپل اشغال په وخت کې یې درې ځلې د افغانستان تعلیمي نصاب تبدیل کړ، او په هر ځل تبدیلۍ کې یې په تدریج سره هغه مضامین ورڅخه و ویستل چې زده کوونکو ته یې د حقیقي اسلام، جهاد، دفاع، آزادۍ او له کفارو څخه د کرکې کولو مفاهیم ورتلقینول. او د دې مفاهیمو پر ځای یې په سیستماتیک ډول داسې مفاهیم ورکې راوستل چې نوی نسل د جهاد او دفاع له روحیې څخه محروموي، او په لاشعوري ډول یې له غرب سره په هرڅه کې پیوند اخیستلو ته هڅوي.

امریکا د افغانستان له اشغالولو وروسته د افغانستان تعلیمي نصاب د اهدافو مطابق تیار کړ، خو د ډېر تأسف ځای دا دی چې امریکا او غرب خپل تعلیمي او فکري جنایات دلته د هغو خلکو په توسط تر سره کړل چې یو وخت یې ځانونه مجاهدین، اخوانیان، اسلامي فرهنګیان او د (نړیوال اسلامي حرکت!!!؟) منسوبین ګڼل، خو نن د همدغو جنایت کارو نومونه د مؤلفینو، مشاورینو او د تعلیمي نصاب د پروژې د مشرانو په حیث د هغو کتابونو پر پشتیو لیکل شوي چې د (نبراسکا) د امریکایي پوهنتون تر څارنې لاندې جوړ شوي، د (USAID) لخوا یې بودیجه برابره شوي، او د (آیساف) له لوري چاپ شوي، او دتدریس لپاره د تعلیم او تربیې د وزارت په اختیار کې ورکړل شوي دي.

دغه خلک شایي د خلکو په سترګو کې خاورې واچوي او و وایي چې یو عصري متوازن او له اسلام سره برابر نصاب یې جوړ کړی دی، خو دوئ په حقیقت کې هغه نصاب جوړ کړی چې د صلیبي جګړې اعلانوونکي (جورج بوش) هغه خپل ملت ته په افغانستان کې د خپلې یوې بریا په حیث اعلان کړ او ویې ویل:

: “And before the end of the year, we’ll have sent almost ١٠ million of them [that is, new textbooks] to the children of Afghanistan. These textbooks will teach tolerance and respect for human dignity instead of indoctrinating students with fanaticism and bigotry.”

– George W. Bush, “Weekly Radio Address,” March ١٦, ٢٠٠٢

(دکال تر ختمیلو مخکې به موږ د افغانستان ماشومانو ته تقریباً لس ملیونه درسي کتابونه ورلیږلي وي. دغه کتابونه به هغوئ ته (د نورو په مقابل کې) زغم او د توندلاریتوب او تعصب پر ځای د انساني کرامت احترام ورزده کوي).

دا خو لا د هغه نصاب اړه خبره وه چې امریکا په اول ځل د (کرزي) حکومت ته تیار کړی وو او ډیرې تبدیلۍ یې لا ورکې نه وې راوستلې. تر هغه وروسته افغاني نصاب دوه ځله بیا د امریکایي مشاورینو تر څارنې لاندې د اسلامي او جهادي مفاهیمو له مفرداتو او تاثیراتو څخه محروم شو، او پر ځای یې د غربي فرهنګ تاثیرات او مفاهیم ورکې ځای پر ځای شول.

**د تعلیم د لادینه کولو لارې چارې:**

غرب په پیل کې له لاندې یادو شویو دوو لارو په مسلمانانو هیوادونو کې د تعلیم د لادینه کولو هڅې شروع کړې:

**اول:** غربي هیوادونو د یوې منظمې استراتیژۍ له مخې هغه مسلمان ځوانان چې غرب ته د علومو د زده کړې لپاره ورغلي وو د علومو ترڅنګ په غربي فرهنګ او مادي فلسفه هم وروزل. دغو هیوادونو له بېلابېلو لارو او سکالرشیپونو ذهین او با استعداده ځوانان وروغوښتل، او له فراغت وروسته یې په خپلو مستعمره هیوادونو کې د چارو واګي ورسپارل، چې هغوئ بیا خپله هماغه غربي نظریه دلته پلې کړه، او د خپلو هیوادونو تعلیمي نصابونه یې پر هماغو غربي نظریاتو ودرول چې دوئ هلته منلي ول.

**دوهم:** استعماري هیوادونو په خپلو مستعمراتو کې داسې مکتبونه، پوهنتونونه او تعلیمي اداري جوړې کړې چې نصاب، استاذان، لوائح، قوانین او هر څه یې په مستقیمه توګه د مستعمرینو له لوري پر مخ بیول کېدل، خو د دغو ادارو متعلمین یې د تر اشغال لاندې هیوادونو د متنفذو کورنیو او چارواکو اولادونه ول چې په طبیعي ډول به په نظام او حکومت کې مطرح کېدل.

دغو دواړو چارو داسې تعلیمي چارواکي، استاذان او مفکرین رامنځته کړل چې له اسلام سره دښمني او د مادي ژوند فلسفه یې په سیستماتیك ډول له غربیانو څخه په میراث اخیسې وه، او د هغې لپاره کار او مبارزه یې د پرمختګ او ( روڼ اندي توب ) تر عنوان لاندې خپل افتخار باله.

**د غرب تعلیمي مشاورین او ماهرین:**

په ټولو اسلامی هیوادونو کې استعماری هیوادونو خپل تعلیمی ماهرین او مشاورین د مختلفو فشارونو او یا د تعلیم لپاره د مالی مرستو په ورکولو او نورو لارو په کار وګومارل چې له تعلیمي نصابونو څخه هر هغه څه وباسي چې د استعماری هیوادونو د اهدافو د تحقق په لار کې خنډ ګرځي، چې په لومړی قدم کې یې اسلامې تاریخ او بیا وروسته د قرآن ایتونه، نبوي احادیث او ټول ایدیالوژیك مضامین یا په مکمل ډول له نصابه و وایستل، او یا یې په مسخه شوي او نیمګړي ډول او په بې اهمیته شکل کې متعلمینو ته وړاندې کړل. خو د دې کار په مقابل کې یې د غربي نړۍ سیاسي، اقتصادي، فکري او اخلاقي ارزښتونو ته په پراخه پیمانه په نصاب کې ځای ورکړ، او کوښښ یې وکړ چې متعلمینو ته غرب د یوې (نمونه) ټولنې په حیث ور وپیژنی، چې د دې کار نتیجه له شرق او اسلام څخه د یوه کرکجن خو په غرب او غربي ارزښتونو د مین نسل په شکل کې راووتله.

**د تعلیمي ماحول غربي کول:**

د هرې تعلیمي ادارېواړه او ځوانان له خپل ماحول څخه رنګ اخلي، او په هماغو معیارونو ځان برابروي چې په خپل ماحول کې یې ویني.

نن ورځ په اسلامي نړۍ کې د استعمار د شاګردانو په لاس جوړو شویو تعلیمي اداروپه پوره ډول د غربي هېوادونو د کلتور او ژوندبڼې د ننداړتونونو شکل غوره کړی دی. د دې لپاره چې د تعلیمي ادارو محیط په ټولیزه توګه له اسلام او اسلامپالنې څخه محروم شوی وي په ټولو تعلیمي ادارو او د هغو په لیلیوو کې د مسجدونو جوړول هېڅ په پام کې ندي نیول شوي، ځکه چې تعلیمي مسؤولین په تعلیمي ماحول کې د مسجدنو له رول او تأثیر څخه په وېره کې دي.

د افغانستان په ټولو پوهنتونو او لیلیه لېسو کې یو اساسي مسجد هم ندی ودان شوی، خو په مقابل کې په هر پوهنتون او لیسه کې د سینما او تیاتر اسانتیاوې په نظر کې نیول شوې وې، او په هغو کې د زده کوونکو او ځوانانو لپاره د غربیانو د لویدلي او حیواني فرهنګ فلمونه او ډرامې ښودل کېدلې. همدغه سبب و چې په پوهنتونونو کې د پوهانو، مخترعینو او محققینو پر ځای زمونږ له تعلیمي ادارو او پوهنتونونو څخه کمونستان، شعله یان، ستمیان، افغان ملتیان او نور د نشنلستي افکارو لرونکې خېرې ټولنې ته راووتلې، چې هېواد ته یې پردي افکار راوارد کړل، او بیا یې د زور او جبر له لارې پر خلکو ور وتپل، چې په نتیجه کې یې د افغانانو ډاډمن ژوند د انقلابونو، کودتاګانو او اضطرابونو په طوفان کې تباه او برباد شو.

په اسلامي نړۍ کې د تعلمي ماحول د لا خرابولو لپاره د نجونو او هلکانو ترمنځ د مخلوط تعلیم سلسله رواج کړای شوه چې مسلمانې ټولنې یې له خطرناکو عواقبو سره مخ کړې. د نجونو او هلکانو ګډ تعلیم په حقیقت کې د غرب د شیطانی دامونو په سلسله کې تر ټولو خطرناك دام وو چې په اسانۍ یې ورکې په ملیونونو پېغلې او ځوانان ښکار کړل. دغه کار نه یوازې دا چې د اسلامي ارزښتونو پر ضد یو اقدام ؤ، بلکې د تعلیم او تربیې په خلاف هم یوه نا اعلان شوې پټه جګړه وه، او دا ځکه چې پېغلې او ځوانان د خپل انسانی فطرت د تقاضا پر اساس د عمر په دغه مرحله کې د (جنس) خوا ته ډېر میلان ښکاروي، او تر بل هر کار یې توجه دې خواته ډېره وي.

له بلې خوا مېډیا، نصاب، بې لارې ادبیات او د مخنیوونکو قوانینو نشتوالی دغه ډول تمایلاتو ته نوره هم هوا ورکوي چې په نتیجه کې یې ځوانان له علم څخه پاتې او په عشق او عاشقیو کې اخته کېږي.

که وغواړو چې په رښتیا سره مو تعلیم د پرمختګ او انکشاف په لور حرکت وکړي، او په دغه ډګر کې افغانان هم د نورې نړۍ د سیالی جوګه شي نو باید تعلیم او تعلیمي ادارې له بې دینۍ (سیکولریزم) او پردي پالنې څخه پاکې شي، او د اسلام د مترقي تمدن پر اساساتو ودرول شي، ځکه چې د قرآن کریم تر ټولو لومړي آیتونه د علم او قلم په اړه نازل شوي دي، او دا هم ښکاره خبره ده چې اسلامي تمدن چې انساني نړۍ ته کوم مترقي فرهنګ متعارف کړی هېڅ بل دین او مذهب یې ساری نه لري.

# د مرحوم ملا الله داد "طبيب"

# ژوند ته کتنه

عبدالرؤف حکمت

د ۱۴۳۷ هـق کال د صفرالمظفر په ۱۵ مه نیټه د اسلامي امارت د کابینې پخوانی غړی او د روس ضدجهاد د مهال وتلی مجاهد ملا الله داد طبیب د هجرت په دیار کې د معدې د سرطان ناروغۍ له امله خپل روح د ارواحو مالک ته وسپاره او له دې فاني دنیا یې سترګې پټې کړې.

ملا الله داد طبیب چې داسلامي امارت یو له مقدمو او مهمو افرادو څخه و او څو کاله د افغانستان د مخابراتو د وزیر په حیث پاته شوی وپه دې سربیره په شخصي لحاظ هم د ښه شخصیت او مؤمن کرکتر خاوند و چې په وفات یې ډیر زړونه غمجن شول. په لاندې کرښو کې د نوموړي ژوند او کارنامو ته لنډه کتنه کوو هیله ده دنوموړي مرحوم د یاد تازه کولو تنده موپرې ماته شي.

**له پیداینښته تر وفاته**

ملا الله داد طبیب د ملا ولي محمد زوی د سرفراز لمسی په قوم پښتون/کاکړ د کندهار ولایت د ارغنداب ولسوالۍ د سردې د کلي اوسیدونکی و.

نوموړی له اوس نه شپیته کاله وړاندې په ۱۳۷۷ هـ ق کال کې هغه وخت چې پلار یې مرحوم ملا ولي محمد د شاولي کوټ ولسوالۍ د اڅکزو سوزني په سیمه کې ملایې درلوده په یاده سیمه کې دنیا ته راغی، د نوموړي پلار دینې عالم و نو ځکه یې لومړنۍ زده کړې هم له خپل پلار څخه ترلاسه کړې، وروسته د شاولیکوټ په ویان سیمه کې د مولوي عبدالاحد مدرسې ته لاړ او تر پنځلس کلنۍ پورې یې همالته دیني تعلیمات تعقیب کړل.

نوموړی د پنځلس کلنۍ په عمر ددیني زده کړو لپاره کندهار ښار ته راغی او په ښار کې یې د حافظ عبدالکریم صاحب په مدرسه کې دیني زده کړو ته دوام ورکړ،حافظ عبدالکریم یو بااحساسه او جهاد پروره شخص و،چې وروسته په کندهار کې د کمونیزم په وړاندې لومړنی مسلح جهاد هم دده لخوا پیل شو، له حافظ عبدالکریم صاحب سره اوسیدو د ملا الله داد طبیب په شخصیت ژور اغیز وکړ او په نوموړي کې یې د جهاد جذبه راویښه کړه.

په افغانستان د کمونیستي واکمنۍ په اوائلو کې هغه وخت چې په جنوبي ولایاتو کې جهاد لا نه و پیل شوی خو د هیواد په نورو سیمو کې جهادي فعالیتونه پیل شوي وو، نوموړی د حافظ عبدالکریم لخوا د جهادي خدمت په بهیر کې هرات ولایت ته واستول شو، کله چې د ۱۳۵۷ هـ ش کال د حوت په ۲۴ په هرات ولایت کې ستر اولسي- جهادي قیام وشو ملا الله داد طبیب هم د یوه ځوان او زړور مجاهد په حیث ددې قیام برخوال و،چې له دښمن سره په جګړه کې ټپي او بیا په ډیر سخت حالت کې د نورو مجاهدینو لخوا د

علاج لپاره ایران ته واستول شو تردې چې هلته یې معالجه وشوه.

په ایران کې له دریو میاشتو تیرولو وروسته ملاالله داد اخند بیرته کندهار ته راغی، دغه وخت په کندهار کې د مجاهدینو یو مهم مرکز په ارغسان کې د حافظ عبدالکریم صاحب جهادی قرارگاه وه،ملا الله داد اخند دغه جهادي مرکز ته ورغی اود حافظ عبدالکریم تر مشرۍ لاندې یې په جهادي مبارزه پیل وکړ.

په سرحدي ولسوالیو کې له بریالیو جهادي عملیاتو وروسته چې د روس خلاف د جهاد په اوج کې حافظ عبدالکریم ارغنداب ته لاړ او د گل کلاچې په سیمه کې په یوه سخته جگړه کې شهید شو ملا الله داد طبیب هم ددې جگړې برخوال و، وروسته ملا الله داد طبیب د ملا شیرین اخند په جبهه او بیا د ملا عزیرالله په جبهه کې د نظامي قوماندان په حیث جهاد ته ادامه ورکړه.

دغه وخت ددوی مراکز په ارغنداب کې و او عملیات یې د کندهار ـــ هرات په لاره، د ښار په مربوطاتو او د دامان ولسوالۍ په مربوطاتو کې ترسره کول،د مرحوم ملا الله داد ورور او د جهاد ملگری ملا دادالله وایي چې ملا الله داد یو غښتلی مجاهد و چې یوځل یې په یوه جگړه کې د شورویانو درې ټانگونه په یوازې سر ویشتلي او له منځه وړي وو.

د روس ضد جهاد په مهال کله چې په کندهار کې د مجاهدینو د خپل منځي مشکلاتو د حل په موخه یوه عمومي محکمه او نورې د ولسوالیو محکمې جوړې شوې ملا الله داد اخند ته د ارغنداب د محکمې مشري وروسپارل شوه نوموړي ځو کاله په ډیر اخلاص دغه خدمت ترسره کړ او بیا د جهاد له وروستیو کلونو د طالبانو د تحریک د پیل تر وخته چې په کندهار کې قوماندان بازۍ او ذات البیني جگړې رواني وې نوموړی په دنیوي کاروبار یا تجارت بوخت و تر دې چې د طالبانو اسلامي تحریک قیام وکړ او د کندهار له فتحې وراندې کله چې طالبان په ډنډ کې و نوموړی ورسره یوځای شو، چې بیا د واکمنۍ او جهاد په ټوله دوره کې د امارت یو مخلص خدمتگار پاته شو تر څو یې په همدې لاره کې له اوږده موده زندان تیرولو وروسته د اجل داعي ته لبیک ووایه .

## په اسلامي امارت کې خدمت

د طالبانو د تحریک د پیل په مهال ملا الله داد طبیب د عالي شورۍ غړی و او ورسره یې د مالي چارو د مسؤل په حیث هم دنده اجراء کوله،وروسته د کندهار ولایت د گمرک د مسؤل په حیث وټاکل شو چې بیا یې څه موده په هرات ولایت کې هم د گمرک د مسؤل دنده اجراء کړه.

د کابل له فتحې وراندې ملا الله داد اخند په کندهار کې د مخابراتو د رئیس په حیث دنده اجراء کوله،او کله چې د اسلامي امارت لخوا کابل فتحه شو نوموړی د اسلامي امارت د مخابراتو د وزیر په حیث تعین شو او بیا یې د امریکایي یرغل تر وخته لومړی ډیره موده د مخابراتو د وزیر او په پای کې څه موده د همدې وزارت د معین په حیث دنده اجراء کړه.

ملا الله دادطبیب په کابل کې د اسلامي حکومت له پیل سره دمخابراتو وزارت دنده په داسې حال کې په غاړه واخیسته،چې د هیواد د مخابراتي سیستم اتیا فیصده امکانات په داسې ډول له منځه تللي و چې حتی د ټیلفوني لین د انتقال پایې هم په برقي ارو باندې غوڅې شوې او د کباړ په بیه پلورل شوي وې.

نوموړي د طالبانو د واکمنۍ له پیل سره یې د مخابراتو په برخه کې کار له صفر څخه شروع کړ،په لومړي ځل یې په لویو ښارونو کې د بې سیم او رادیو ریلي زړې دستگاوې

ترمیم کړې چې په توسط یې د ولایتي مرکزونو ترمنځ اړیکي فعالې شوې وروسته یې له نړۍ سره د افغانستان د مخابراتي اړیکو دنښلولو لپاره په کابل کې د مایکروویف زوړ سیستم فعال کړ چې د ننګرهار او پېښور له لارې یې هیواد له نړۍ سره وتاړه.

خو څرنګه چې د هیواد مخابراتي سیستم ډیر زوړ او د استهلاک پړاو یې بشپړ کړی و تردې چې د ترمیم لپاره یې پرزې هم نه پیدا کیدلې نو ځکه د اتصالاتو په برخه کې د نویو سیستمونو په فعالولو غور وشو، چې په ټولو لویو ښارونو کې د ډیجیټل ټیلفونونواو یا انترکم شبکې فعالې شوې چې هرې یوې زرګونه لینونه درلودل او هیوادوالو ته یې له کلونو وروسته د تیلفوني اړیکو زمینه برابره کړه.

دغه راز دمخابراتي پرمختګ په برخه کې د نړیوال سټلایټ ټیلفونونو د ګڼ شمیر ګوشیو جوازات تقسیم شول چې هیوادوالو ته یې د نړیوالې مخابرې په برخه کې لوی سهولت رامنځ ته راکړ،په دې سربیره د هغه مهال دمخابراتو وزارت یو لوی پلان د عامو مبایل ټیلفونونو د شبکو فعالیت و، چې د ملا الله داد اخند په ابتکار یې له یوه امریکایي خصوصي شرکت سره تړون لاسلیک او په لومړي پړاو کې د ۳ لکه مبایل سیم کارتونو د تقسیم په پروژه تعهد وشو چې دغه پروژه به د افغان بې سیم په نوم د یوه سهامي شرکت لخوا اجراء کیدله چې اتیا فیصده ونډه د کمپنیو او شل فیصده یې د مخابراتو د وزارت وه، امریکایي ظالمانه بندیزونو او د ملل متحد د امنیت شورا بې انصافه پریکړو د طالبانو د ګڼو نورو انکشافي پروژو غوندې دا پروژه هم معطله کړه، تردې چې له امریکایي یرغل وروسته یې د بندیزونو له پورته کیدو سره په هماغه نوم پروژه تطبیق شوه چې اوس د ګرځنده اتصالاتو په برخه کې پیشرفت د افغانستان تر ټولو مثالي پرمختګ بلل کیږي، هغه چې کریډیټ یې د کرزي حکومت او دمخابراتو وزیر امیرزي سنګین ته ورکول کیږي په داسې حال چې په دې برخه کې لومړنی او بنیادي کار د هیواد او مؤمن اولس د یوه ګمنام خادم مرحوم طبیب صاحب لخوا ترسره شوی و.

## د مرحوم طبیب صاحب شخصیت او د ژوند وروستي کلونه

له امریکایي یرغل وروسته نوموړی له خپلې کورنۍ سره پاکستان ته لاړ او هلته یې د هجرت له سختیو سره مخفي ژوند غوره کړ، خو همیشه له مجاهدینو سره په رابطه کې و او د خپل توان په اندازه خدمت یې ترسره کاوو.

د امریکایي یرغل په لومړنیو کلونو کې چې د اسلامي امارت په منسوبینو او مجاهدینو ددښمن لخوا د ژوند کړۍ ډیرې تنګه شوې وه، له یوې خوا د امریکا په مشرۍ نړیوال ایتلاف نیول، وژل او تعذیبول او له بلې خوا په هیواد کې دننه او ګاونډیو ملکونو کې هم ورته خطرات متوجه و او یو په بل پسې نیول کیدل او امریکایانو ته سپارل کیدل، ملا الله داد طبیب په همدې حالاتو کې همدا د سختیو ژوند غوره کړ او د امریکایانو د تسلیمۍ او ورسره د ملګرتیا غوښتنې یې قبولې نکړې، تردې چې یوځل د امریکایانو مشر ګوډاګي حامدکرزي د نوموړي ټیلفوني نمبر پیدا کړي و ، ټیلفون یې ورته وکړ او به ډیر مهارت او مکر یې ورته وویل چې تاسو هیواد ته خدمت کړی، که تاسو کابل ته راشئ نو بیرته پخوانۍ د وزارت دنده به درته وسپارل شي او ژوند به مو خوندي وي.

خو ملا الله داد طبیب ورته په ځواب کې وویل چې تاسو ادرس خطاء کړی او غلط اټکل مو کړی، موږ دا جهاد او مبارزه ددې لپاره نه کوله چې د کفر تر ځغ لاندې وزارت او منصب پیدا کړو،موږ د غلامۍ له ژونده په ازادانه مرګ

خوشاله یو،موږ چې هیواد ته خدمت کاوو د اسلامي نظام تر سیوري لاندې مو کاوو، د کفري اشغال ترسیوري لاندې وظیفه اجراء کول خدمت نه بلکې له دین او اولس سره لویه غداري ده.

ملا الله داد طبیب وروسته د پاکستان د حکومت لخوا ونیول شو چې ۵ کاله دوه میاشتې په کویټه او ۱۴ میاشتې په اسلام اباد کې په داسې حال کې بندي وساتل شو چې شپږ کاله یې له کورنۍ سره هیڅ حال احوال نه و او نه یې هم څوک له مرگ او ژوند څخه خبر و.

نوموړي ته دبند په دې شپږ نیم کلنه دوره کې د معدې سرطان ناروغي عارضه شوه، چې له راخلاصیدو وروسته یې معالجه پیل کړه خو گټه یې ونه کړه تر دې چې له زندان وروسته له درې کاله ژوند تیرولو وروسته د ۱۴۳۷ هـ ق کال د صفرالمظفر په ۱۵ نیټه د جمعې په مبارکه شپه وفات او د کندهار په ارغنداب کې په خپله پلرنۍ هدیره کې خاورو ته وسپارل شو.

دمرحوم ملا الله داد طبیب په اړه دده کشر ورور ملا دادالله وایي چې نوموړی پاک نفسه او مجاهد سړی و، الله تعالی ورته ستر استعداد، ذهانت او ښه علم ورکړی و،نوموړی له روسانواو کمونیستانو سره په جگړو کې یوځل په هرات او دوه ځله په کندهار کې ټپي شوی و، د دنیایي متاع شوق یې نه درلود، نوموړی د روس ضد جهاد په مهال په کندهار کې د ملا عزیزالله د جبهې نظامي قوماندان و خوکله چې له دې جبهې څخه تلو نو ټولې وسلې یې ورته وسپارلې او حتی یوه تفنگچه یا کارتوس یې هم قبول نه کړ او خپل د جبهې مشر ته یې وویل چې ما جهاد د الله تعالی د رضاء لپاره کړی هماغه اجر مې بس دی په یوه څادره کې درته راغلی وم او په همدې څادره کې بیرته درنه ځم .

د اسلامي امارت پخوانی د کابیني غړی او د فرهنگي کمیسیون مشاور ملا سعد الدین سعید چې ډیر وخت له ملا الله داد طبیب سره نږدې پاته شوی وایي: مرحوم طبیب صاحب ډیر عابد انسان و،که په کابل کې د وزارت په مهال و یا د هجرت د ډار او سختۍ په ماحول کې نوموړی به پنځه وخته لمانځه ته مسجد ته تلو او کله یي هم په کور کې فرضي لمونځ نه اداء کاوو.

څو ډیر ښه عادات یي درلودل چې همیشنی معمول یي و، یو دا چې سهار به ډیر وختي راویښېده د تهجد لمونځ یي کاوو او بیا د سهار د لمانځه تروخته په اذکارو مصروف و، د اشراق لمونځ یي هم معمول و او بل دا چې د مسلمان له غیبت او بدگویي نه یي ډیر به ټینگه ځان ساتلی و.

د ملا الله داد طبیب د وفات په اړه د افغانستان د اسلامي امارت په خپاره کړې رسمي تعزیتي بیان کې راغلي:

په ډیري خواشینۍ سره مو خبر ترلاسه کړ چې د افغانستان اسلامي امارت د مخابراتو پخوانی وزیر محترم ملا الله داد طبیب د سرطان د ناورغۍ له کبله د تیري جمعې په شپه په حق ورسید او جنازه یی په خپل پلرني تاټوبي کي خاورو ته وسپارل شوه.

انا لله وانا الیه راجعون!

اسلامي امارت د محترم ارواښاد ملا الله داد طبیب صاحب د خدمتونو قدرداني کوي، د نوموړي د فراق په غم کي یي له کورنۍ سره ځان شریک گڼي، الله تعالی دي مرحوم ته جنت الفردوس، کورنۍ او دوستانو ته یي دي صبر جمیل وروپه برخه کړي. امین

دافغانستان اسلامی امارت

۱۶/۲/۱۴۳۷ هـ ق

# قوانین خانه ی مسلمان

ترجمه: مسعود

خانه ی مسلمان براساس دسته ای قوانین استوار می باشد که باعث استحکام آن شده و مسیر زندگانی افراد آن را تنظیم می نماید. به این ترتیب این خانه ها از خانه های دیگر بازشناخته می شوند و قوانین آن برگرفته از قرآن کریم و سنت نبوی شریف و سیره ی پیامبر صلی الله علیه و سلم، و حیات صحابه و تابعین می باشد.

**مهم ترین ارکان این قوانین عبارتند از:**

- داشتن ایمان واقعی به خداوند سبحان و اخلاص مورد لزوم این ایمان، خشیت همیشگی و تقوای خداوند و اجرای اوامر و پرهیز از نواهی او و ذکر و یاد بسیار پروردگار.

- ایمان به ملائکه ی خداوند و کتاب هایش، ایمان به پیامبران و روز آخرت و قضاء و قدر الهی، خداوند متعال می فرماید: {آمن الرسول بما أنزل إليه من ربه والمؤمنون كل آمن بالله وملائكته وكتبه ورسوله لا نفرق بين أحد من رسله} [البقره: ۲۸۵] یعنی: « پیامبر (خدا) بدانچه از جانب پروردگارش بر او نازل شده است ایمان آورده است، و مؤمنان همگی، به خدا و فرشتگان و کتاب ها و فرستادگانش ایمان آورده‌اند.»

- ایمان به رسول خدا صلی الله علیه و سلم و پایبندی بر سنت او، عمل نمودن به آنچه بدان امر فرموده و دور گشتن از هرآنچه از آن نهی کرده باشد، که خداوند متعال اینگونه می فرماید: {وما آتاكم الرسول فخذوه وما نهاكم عنه فانتهوا} [الحشر: ۷] معنی آیه ی شریفه: « و آنچه را پیامبر [او] به شما داد آن را بگیرید و از آنچه شما را باز داشت بازایستید.»

- به جا آوردن نمازهای پنجگانه و پایندی و مداومت بر ادای ان ها در وقت معین خود. خداوند متعال می فرماید: {إن الصلاه كانت على المؤمنين كتابًا موقوتًا}_[النساء: ۱۰۳] معنی آیه: « همانا که نماز بر مؤمنان در اوقات معین مقرر شده است.»

- ادای حق خداوند در مال و دارائی های خویش بوسیله ی دادن زکات و صدقات، پروردگار متعال می فرماید: {والذين في أموالهم حق معلوم . للسائل والمحروم} [المعارج: ۲۴-۲۵] یعنی: « وهمانان که در اموالشان حقی معلوم است* برای سائل و محروم.»

- گرفتن روزه ی ماه مبارک رمضان، خداوند متعال فرموده است: {يا أيها الذين آمنوا كتب عليكم الصيام كما كتب على الذين من قبلكم لعلكم تتقون}_[البقره: ۱۸۳] یعنی: « ای کسانی که ایمان آورده‌اید روزه بر شما مقرر شده

است همان گونه که بر کسانی که پیش از شما [بودند] مقرر شده بود باشد که پرهیزگاری کنید.»

- رهسپار شدن برای به جای آوردن فریضه ی حج در صورت توان و استطاعت. خداوند متعال می فرماید: {ولله على الناس حج البيت من استطاع إليه سبيلا}_[آل عمران: ۹۷] یعنی: « و برای خدا حج آن خانه بر عهده مردم است [البته بر] کسی که بتواند.»

- رابطه ی زناشویی بر مدار آرامش، دوستی و مهرورزی برقرار می گردد، خداوند باری تعالی در قرآن کریم اینگونه بیان می فرماید: {ومن آياته أن خلق لكم من أنفسكم أزواجًا لتسكنوا إليها وجعل بينكم موده ورحمه إن فی ذلک لآيات لقوم يتفكرون} [الروم: ۲۱] یعنی: « و از نشانه‌های او اینکه از [نوع] خودتان همسرانی برای شما آفرید تا بدانها آرام گیرید و میانتان دوستی و رحمت نهاد آری در این [نعمت] برای مردمی که می‌اندیشند قطعا نشانه‌هایی است.» زن و شوهر باید برای زندگی مشترک خویش قوانینی را وضع کنند و پایه و اصولی را برای تفهم مشترک میان خویش و در جهت تداوم دوستی، عشق و مهر و محبت و همچنین برای رسیدن به خوشبختی بنیان بنهند.

- مرد در منزل خویش حق سرپرستی دارد، خداوند متعال می فرماید: {الرجال قوامون على النساء بما فضل الله بعضهم على بعض وبما أنفقوا من أموالهم} [النساء: ۳۴] یعنی: « مردان سرپرست زنانند به دلیل آنکه خدا برخی از ایشان را بر برخی برتری داده و [نیز] به دلیل آنکه از اموالشان خرج می‌کنند.»

- رعایت حقوق و وظایف مشترک بین مرد و زن در منزل، رسول خدا صلى الله عليه و سلم می فرماید: (الرجل راعٍ فی أهله وهو مسئول عن رعيته، والمرأه راعيه فی بيت زوجها، وهی مسئوله عن رعيتها) یعنی:« مرد، مسئول خانواده و زیر دستانش می باشد. زن در خانه شوهر، مسئول زیر دستان خود است.» [متفق علیه]

- پایبندی زن در به جا آوردن حق و حقوق شوهر بر وی و اطاعت از او، پیامبر صلى الله عليه و سلم فرموده اند: (إيما امرأه ماتت وزوجها عنها راضٍ دخلت الجنه) یعنی: « هر زنی که بمیرد و شوهرش از او راضی باشد، به بهشت داخل می گردد.» [الترمذی]

- حس تعهد پدر خانواده به برآوردن حق و حقوق همسرش با معاشرت و برخورد نیکو و پاکدامن نگاهداشتن وی (با ارتباط زناشویی با وی) و برعهده گرفتن خرج و مخارج او، رسول خدا صلى الله عليه و سلم می فرماید: (إذا أنفق المسلم نفقه على أهله وهو يحتسبها؛ كانت له صدقه) یعنی: « اگر مسلمان، به نیت ثواب به خانواده اش، انفاق نماید، برایش صدقه، محسوب می شود.»_[متفق علیه]

- احساس مسئولیت والدین در مورد مراقبت از فرزندان، تربیت نیکوی آنان و آموختن مسائل دینی به ایشان، پیامبر خدا صلى الله عليه و سلم فرموده است: (مروا أولادكم بالصلاه وهم أبناء سبع سنين، واضربوهم عليها وهم أبناء عشر سنين . وفرقوا بينهم فی المضاجع) یعنی: « اولاد خود را در هفت سالگی به نماز امر نموده و از ده سالگی به نماز امر نموده و آنها را بخاطر ترک نماز بزنید وخوابگاهشان را جدا کنید.» [ابوداود]

- پایبندی فرزندان به نیکی با والدین و اطاعت از آنان در آنچه مورد رضای پروردگار باشد، خداوند متعال می فرماید: {وقضى ربک ألا تعبدوا إلا إياه وبالوالدين

إحسانًا}_[الإسراء: ۲۳] یعنی:« و پروردگار تو مقرر کرد که جز او را مپرستید و به پدر و مادر [خود] احسان کنید.»

- نگه داشتن پیوند با خویشان و نیکی با نزدیکان و دوستان، خداوند باری تعالی فرموده است: {واتقوا الله الذی تساءلون به والأرحام} [النساء: ۱] یعنی: « و از خدایی که به [نام] او از همدیگر درخواست می‌کنید پروا نمایید و زنهار از خویشاوندان مبرید.» و رسول خدا صلی الله علیه و سلم نیز سفارش نموده اند که: (من سره أن یُبسط له فی رزقه، وأن یُنسأ له فی أثره، فلیصل رحمه) یعنی: « کسی که دوست بدارد اینکه روزی اش فراخ گردیده و عمرش طولانی گردد، باید صلهء رحمش (پیوستگی با نزدیکان) را پیوسته بدارد.» [البخاری] باز آنحضرت صلی الله علیه و سلم چنین فرموده است: (من أبَر البر أن یصل الرجل وُدَّ أبیه) معنی حدیث: « بهترین احسان اینست که شخص دوستی پدرش را استمرار دهد با دوستان پدرش و با دوستان پدرش پیوستگی کند.»_[مسلم والترمذی]

- پایبندی به حق و حقوق همسایه، پیامبر صلی الله علیه و سلم می فرماید: (مازال جبریل یوصینی بالجار حتی ظننتُ أنه سیورِّثه) یعنی: « همیشه جبرئیل علیه السلام مرا در مورد همسایه توصیه می نمود، تا اینکه گمان کردم شاید همسایه از همسایه میراث ببرد.» [متفق علیه]

- شناخت برتری و امتیازات شایسته ی هر کس و احترام نهادن به بزرگ ترها، رسول خدا صلی الله علیه و سلم می فرماید: (لیس منا من لم یرحم صغیرنا ویعرف شرف کبیرنا) یعنی: « کسی که به کوچک ما رحم نکرده و به شرافت بزرگ ما آشنا نباشد، از ما نیست.»_[ابوداود والترمذی]، همچنین آنحضرت صلی الله علیه و سلم فرموده است: (أنزلوا الناس منازلهم) یعنی: « هر کسی را به جایگاهش قرار دهید.» [ابوداود]

- آراستگی به شکیبایی در برابر دشواری ها و مصیبت ها در تمام جوانب زندگی، خداوند متعال چنین می فرماید: {یا أیها الذین آمنوا استعینوا بالصبر والصلاه إن الله مع الصابرین} [البقره: ۱۵۳] یعنی: « ای کسانی که ایمان آورده‌اید از شکیبایی و نماز یاری جویید زیرا خدا با شکیبایان است.»

- راستی در معامله و سخن گفتن، پیامبر خدا صلی الله علیه و سلم می فرماید: (إن الصدق یهدی إلی البر وإن البر یهدی إلی الجنه) یعنی: « همانا راستگویی، انسان را بسوی نیکی، رهنمون می شود. و نیکی، انسان را به بهشت می رساند.» [متفق علیه]

- توکل بر خداوند و اعتماد به او، خداوند سبحان در قرآن کریم فرموده است: {ومن یتوکل علی الله فهو حسبه} _[لطلاق: ۳] یعنی: « و هر کس بر خدا اعتماد کند او برای وی بس است!»

- استقامت بر مسیر خداوند، پروردگار متعال می فرماید: {فاستقم کما أمرت} [هود: ۱۱۲] یعنی: « پس همان گونه که دستور یافته‌ای ایستادگی کن.»

- شتافتن به سوی کارهای نیک و اعمال صالح، خداوند متعال می فرماید: {فاستبقوا الخیرات} [المائده: ۴۸] یعنی: «پس در کارهای نیک بر یکدیگر سبقت گیرید.»

- اجتناب از بدعت و امور منکر، پیامبر خدا صلی الله علیه و سلم می فرماید: (من أَحْدَث فی أمرنا هذا ما لیس فیه؛ فهو رَدّ) یعنی: « کسیکه در این امر "دین ما" چیزی را بیاورد که از آن نیست مردود است.» [متفق علیه]

- همکاری در کارهای نیک و خداترسی؛ در تمام امور زندگی. خداوند متعال می فرماید: {وتعاونوا علی البر والتقوی.} [المائده: ۲] یعنی: « و در نیکوکاری و پرهیزگاری با یکدیگر همکاری کنید.»

– سعی در خیرخواهی و نصیحت و امر به معروف و نهی از منکر، رسول خدا صلی الله علیه و سلم فرموده اند: (الدین النصیحه) معنی حدیث: «دین یعنی خیرخواهی!» [مسلم]

- خودداری از ظلم و ستم، پیامبر صلی الله علیه و سلم می فرماید: (اتقوا الظلم، فإن الظلم ظلمات یوم القیامه) یعنی: « از ظلم بترسید، زیرا ظلم تاریکی های روز قیامت است.» [مسلم]

- پرده پوشی از عیوب دیگران و پاسداشتن حریم آنان، رسول بزرگوار اسلام صلی الله علیه و سلم می فرماید: (لا یستر عبدٌ عبدًا فی الدنیا، إلا ستره الله یوم القیامه.) یعنی: « نمی پوشاند بنده ای (عیب های) بنده ای دیگر را مگر اینکه خداوند در روز قیامت (عیب های) او را می پوشاند.» [مسلم]

- برآوردن نیاز دیگر مسلمانان، پیامبر صلی الله علیه و سلم فرموده اند: (من کان فی حاجه أخیه کان الله فی حاجته، ومن فرج عن مسلم کُرْبه؛ فرج الله عنه بها کربه من کرب یوم القیامه.) یعنی: « کسی که در صدد برآوردن نیازمندی و حاجت برادرش باشد، خداوند در برآوردن حاجتش یاری اش می نماید. کسی که مشکل مسلمانی را حل کند، خداوند در برابر آن مشکلی از مشکلات روز قیامت او را می گشاید.» [مسلم]

- بی توجهی به مال دنیا و کاستن از رنج و زحمت های آن، خداوند متعال اینگونه می فرماید: {وما الحیاه الدنیا إلا متاع الغرور} [الحدید: ۲۰] یعنی: «و زندگانی دنیا جز کالای فریبنده نیست.»

- میانه روی و صرفه جویی در خرج و مخارج زندگی و در خورد و نوش، خداوند متعال می فرماید: {والذین إذا أنفقوا لم یسرفوا ولم یقتروا وکان بین ذلک قوامًا} [الفرقان: ٦٧] یعنی: «و کسانی‌اند که چون انفاق کنند نه ولخرجی می‌کنند و نه تنگ می‌گیرند و میان این دو [روش] حد وسط را برمی‌گزینند.»

- بخشش و جوانمردی، خداوند متعال در قرآن کریم فرموده است: {وما تنفقوا من خیر فإن الله به علیم} [البقره: ۲۷۳] یعنی: «و هر مالی انفاق کنید، قطعاً خدا از آن آگاه است.»

- ایثار کردن و اجتناب از بخل و تنگ نظری، خداوند متعال می فرماید: {ویؤثرون علی أنفسهم ولو کان بهم خصاصه ومن یوق شح نفسه فأولئک هم المفلحون} [الحشر: ۹] یعنی: «و هر چند در خودشان احتیاجی [مبرم] باشد آنها را بر خودشان مقدم می‌دارند و هر کس از خست نفس خود مصون ماند ایشانند که رستگارانند.»

- پرهیزگاری و دوری از شبهات، رسول الله صلی الله علیه و سلم می فرماید:( إن الحلالَ بَیِّن وإن الحرام بَیِّن، وبینهما مُشْتَبِهات لا یعلمهن کثیر من الناس، فمن اتقی الشبهات فقد استبرأ لدینه وعرضه، ومن وقع فی الشبهات وقع فی الحرام) یعنی: «همانا حلال واضح است و حرام واضح است و در میان آن دو امور مشتبهی وجود دارد که بسیاری مردم آن را نمی دانند پس آنکه از شبهات بپرهیزد

برای دین و آبروی خود پاکی جسته است و آنکه به شبهات آلوده شود، در حرام افتاده است.» [متفق علیه]

- فروتنی و فروهشتن بال تواضع، پیامبر صلی الله علیه و سلم فرموده است: ( إن الله أوحی إلیَّ أن تواضعوا؛ حتی لا یفخر أحدٌ علی أحدٍ؛ ولا یبغی أحدٌ علی أحدٍ) یعنی: «هر آئینه خداوند به من وحی نمود که فروتنی کنید؛ تا کسی بر کسی ستم نکند و کسی بر کسی ننازد.» [مسلم]

- بردباری، ملایمت و مهربانی، پروردگار متعال در قرآن کریم می فرماید: {والکاظمین الغیظ والعافین عن الناس والله یحب المحسنین} [آل عمران: ۱۳۴] یعنی: « و آنانکه خشم خود را فرو می‌برند و از مردم در می‌گذرند و خداوند نکوکاران را دوست دارد.» و رسول خدا صلی الله علیه و سلم فرموده است: (إن الرفق لا یکون فی شیء إلا زانه، ولا ینزع من شیء إلا شانه) یعنی: «نرم رفتاری در هیچ چیزی نمی باشد، جز اینکه آن را زینت می دهد و از هیچ چیزی بدور نمی شود، مگر اینکه آن را زشت می سازد.» [مسلم]

- آراستگی به شرم و حیا، پیامبر خدا صلی الله علیه و سلم چنین می فرماید: (الحیاء لا یأتی إلا بخیر) یعنی: «حیاء جز خیر چیزی را ببار نمی آورد.» [متفق علیه]

- وفای به عهد، خداوند باری تعالی می فرماید: {وأوفوا بالعهد إن العهد کان مسئولا} [الإسراء: ۳۴] یعنی: «و به پیمان [خود] وفا کنید زیرا که از پیمان پرسش خواهد شد.»

- لبخند و سرزندگی، رسول الله صلی الله علیه و سلم فرموده اند: (تبسمک فی وجه أخیک لک صدقه) یعنی: «لبخند تو به روی برادرت صدقه ای برای تو است.» [الترمذی]

- متانت و آرامش، خداوند متعال فرموده اند: {وعباد الرحمن الذین یمشون علی الأرض هونًا} [الفرقان: ٦٣] یعنی: « و بندگان خدای رحمان کسانی‌اند که روی زمین به نرمی گام برمی‌دارند.»

- خوشرفتاری، پیامبر خدا صلی الله علیه و سلم می فرماید: (أکمل المؤمنین إیمانًا أحسنهم خلقًا، وخیارکم خیارکم لنسائهم) یعنی: « کاملترین مؤمنان از روی ایمان کسی است که اخلاقش بهتر باشد، و بهترین شما، بهترین شما با زنان شان هستند.» [الترمذی]

- سلام کردن، خداوند متعال چنین می فرماید: {فإذا دخلتم بیوتًا فسلموا علی أنفسکم تحیه من عند الله مبارکه طیبه} [النور: ٦١] یعنی: « پس چون به خانه‌هایی درآمدید به یکدیگر سلام کنید درودی که نزد خدا مبارک و خوش است.»

- اجازه ی ورود طلبیدن. خداوند متعال می فرماید: {یا أیها الذین آمنوا لا تدخلوا بیوتًا غیر بیوتکم حتی تستأنسوا وتسلموا علی أهلها ذلکم خیر لکم لعلکم تذکرون} [النور: ۲۷] یعنی: « ای کسانی که ایمان آورده‌اید به خانه‌هایی که خانه‌های شما نیست داخل مشوید تا اجازه بگیرید و بر اهل آن سلام گویید این برای شما بهتر است باشد که پند گیرید.»

- نیکی و خوشرفتاری با خدمتکاران. رسول خدا صلی الله علیه و سلم می فرماید: (فمن کان أخوه تحت یده فَلْیُطعمه مما یأکل، ولْیُلبسه مما یلبس، ولا تکلفوهم ما یغلبهم، فإن کلفتموهم فأعینوهم ) یعنی: « پس آنکه برادرش زیر دستش باشد، باید او را از آنچه می خورد، بخوراند و از

آنچه می پوشد، بپوشاند. و آنها را به چیزی مکلف نکنید که توانائی آن را نداشته باشند و اگر آنان را مأمور کردید، پس همکاریشان کنید.» [متفق علیه]

- علاقمندی و دوست داشتن دانش و دانش اندوزی. پیامبر صلی الله علیه و سلم فرموده اند: (من سلک طریقًا یلتمس فیه علمًا؛ سهل الله له طریقًا إلی الجنه) یعنی: «کسی که راهی را در جستجوی دانش بپوید، خداوند راهی به سوی بهشت را برایش هموار می سازد.» [مسلم]

- پرهیز از کنجکاوی در کار دیگران، غیبت و سخن چینی. خداوند متعال می فرماید: {یا أیها الذین آمنوا اجتنبوا کثیرًا من الظن إن بعض الظن إثم ولا تجسسوا ولا یغتب بعضکم بعضًا أیحب أحدکم أن یأکل لحم أخی[ه میتًا فکرهتموه] واتقوا الله إن الله تواب رحیم.} [الحجرات: ۱۲] یعنی: «ای کسانی که ایمان آورده‌اید از بسیاری از گمانها بپرهیزید که پاره‌ای از گمانها گناه است و جاسوسی مکنید و بعضی از شما غیبت بعضی نکند آیا کسی از شما دوست دارد که گوشت برادر مرده‌اش را بخورد از آن کراهت دارید [پس] از خدا بترسید که خدا توبه‌پذیر مهربان است.»

- دوری از حسد. رسول خدا صلی الله علیه و سلم می فرماید: (إیاکم والحسد؛ فإن الحسد یأکل الحسنات کما تأکل النار الحطب) یعنی: «از حسد بپرهیزید، زیرا حسد نیکی ها را می خورد، همانطور که آتش هیزم یا علف را می خورد.» [ابوداود]

- دوری از بدگمانی. پیامبر خدا صلی الله علیه و سلم می فرماید: (إیاکم والظن؛ فإن الظن أکذب الحدیث) یعنی: «از گمان بپرهیزید، زیرا گمان دروغترین گفته ها است.» [متفق علیه]

- توجه و اهتمام به زیبایی خانه. رسول خدا صلی الله علیه و سلم فرموده است: (إن الله -تعالی- جمیل یحب الجمال.) یعنی: «خداوند زیبا است و زیبائی را دوست می دارد.» [مسلم]

- رعایت نظم در همه ی امور منزل.

## د ٤ یارانو ۳ عجیب ښکلا ښکل صفتونه!

یوه ورځ حضرت محمد (ص) خپلو څلور واړه یارانو (ابوبکر، عمر، عثمان، علي) سره ناست و، هر یوه نه یې پوښتنه کوله چې ستاسې دخوښې ړ عملونه کوم دي؟

حضرت ابوبکر صدیق (رض) وفرمایل: زما د خوښې ړ عمل داچې

۱ - ستا مخ ته چې کورم خوند ترې اخلم

۲ - ما خپله لور (عایشه) تاته په نکاح درکړې

۳ - چې خپل ټول مال د الله (ج) په لار کې مصرف کړم.

حضرت عمر فاروق (رض) هم په خپل وار وفرمایل:

۱ - خلک نیکۍ ته راوبلم (امربالمعروف(

۲ - له بدۍ څخه یې منع کړم (نهی عن المنکر)

۳ - بله داچې زړې جامې مې په تن وي

حضرت عثمان غني (رض) هم په دې ډول وفرمایل:

۱ - لوڅ پټ کړم

۲ - وږي ماړه کړم

۳ - او د قران کریم د تلاوت څخه ډیر خوند اخلم

حضرت علي اسدالله هم په خپل وار داسې وفرمایل:

۱ - په یخ ژمي کې د شپې عبادت ته پاڅیږم

۲ - په سخته ګرمۍ کې روژې ونیسم

۳ - خپله توره د الله (جل جلاله) په لاره کې استعمال کړم.

# د اسلامي نړۍ د ستر مفتي
# مولانا مفتي محمد فريد رحمه الله په اړه تاثرات

ليکوال سترعلمي شخصيت فقيه العصر مولانا مفتي نورمحمدثاقب صاحب
ژباړونکی : قاري محمد

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله وحده والصّلوة والسّلام على مَن لانبيّ بعده

امابعد : د قطب الارشاد، شيخ المشائخ، قدوة العلماء، استاذ المحدثين، رئيس الفقهاء مفتي اعظم حضرت مولانا مفتي محمدفريدصاحب رحمه الله د يولړملفوظاتو، ليکنو، علمي نکاتو، ارشاداتو، فيوضاتو او نوروځانګړنوپه اړه يوڅوکرښې ليکنه قلم ته سپارم.

په ۱۴۰۴ سپوږميزکال کې چې له ۱۹۸۴ ميلادي کال سره سمون لري مونږ د اکوړه خټک په جامعه دارالعلوم حقانيه کې د نبوي احاديثو دلويې دورې زده کونکي وو( د نړيوالې ديني درسګاه د اسلامي علوم‌ومرکزجامعه دارالعلوم حقانيه اکوړه خټک عظمت، فيوضات، برکات، نړيوال شهرت اومقبوليت له هيچانه پټ نه دی) په هماغه کال د بخاري شريف کتاب المغازي او داسې نور اوپه ترمذي شريف کې ابواب الحج او داسې نور ډېرسبقونه د دارالعلوم ديوبند پخواني استاذ، بقية السلف،شيخ المشائخ، زبدة الاتقياء، د دارالعلوم حقانيه اکوړه خټک باني شيخ الحديث مولاناعبدالحق رحمه الله راته ويل؛ او د دورۀ حديث کتابونه بخاري او ترمذي له پورته يادوشويو ابوابوپرته، مسلم او ابوداؤد د وخت له سترفقيه، لوی محدث عارف بالله مولانا مفتي محمد فريد صاحب سره وو، حضرت مفتي صاحب د داسې علمي تبحر، جامعيت، کمالاتو او فيوضاتو څښتن ووچې د لويې دورې په پای کې مې داسې احساس کړه چې مونږيوازې احاديث نه بلکه له دې مخکې موچې د طالبۍ په زمانه کې کوم علوم او فنون لوستلي وو هغه هم تکرارشول، د حضرت مفتي صاحب د پوهې د بدبه داوه چې د دوئ همعصرو لويولويو شيوخوبه د دورۀ حديث په کتابونو د ده شرحې کتلې، د بېلګې په ډول منهاج السنن، هداية القاري، فتح المنعم او داسې نور، داخبره به د هغومدارسو د دورۀ حديث طالبانوهم کوله؛ د حديثو د دورې په کال به مونږ له جناب مفتي صاحب نه د سبق په وخت کې او همداراز په نورو وختونوکې داسې بې بېلګې، خوښمن، باوري، له معنی ډک عالمانه کلمات، عبارات اوجملې اورېدې چې له کره والي سره سره به ډېرې زياتې ګټورې اوهر اړخيزې هم وې چې د جوامع الکلم بڼه به يې لرله، له دې سره سره به دومره ژورې، قناعت بښونکې او اغېزمنې وې چې د زړه تل ته به کوزېدې، د کاڼي د کرښې په څېربه پخې اوکلکې وې، له لنډوالي سره به په معنی کې غښتې او درنې وې، مونږ داسې ويلای شوچې ګواکې د پخوانيو مصنفينو(ليکوالانو) متون دي، په اختلافي مسائلو کې به يې داسې خبره وکړه چې قول فيصل (يوه پرېکړه) به وه، همداډول د دوئ لطيفې اوعلمي نکتې به هم ډېرې زړه راښکونکې اوپوهنيزې وې، داټول د هغوئ له ځانګړنوڅخه وې؛ د ليکنې د اوږدېدو له وېرې تفصيلي بيان پرېږدو؛ دهغوئ لطيفې اوعلمي نکتې اکثر د هغوئ په تاليفاتوکې ځای په ځای پيداکېږي.

محترم مفتي صاحب به هره ورځ دګهيځ او مازديګرله لمانځه وروسته په خپل استوګنځي (د دارالعلوم په کوارټر

) کې اجتماعي مراقبه کوله چې طالبانو اومریدانوبه یې په کې په ډېره مینه ګډون کاوو، همدارنګه د دارالعلوم په جامع جومات کې به اکثر وخت لمونځونه هم د دوئ په امامت سره اداکېدل؛ مفتي صاحب ته به د هېواد له ګوټ ګوټ نه استفتاء غوښتونکي راتلل، اکثر وخت به دوئ په دارالافتاء کې هغوئ په جوابونونازول اوکله کله به یې په خپل استوګنځي کې هم جوابونه ورکول، مونږ به هم د ځینوپېچلومسائلوپوښتنې ورنه کولې او له هغوئ نه به موعام فهمه حل ترلاسه کاوو، د هغوئ فتوې چې له لنډوالي سره مدللې دي د عوامو اوخواصوترمنځ په یوه ډول مقبولې دي؛ مطلب داچې د حدیثو د دورې کال دعلم، روحانیت، اصلاح، تربیت، فیض اوبرکت په چاپېریال کې تېرشو، ټول کتابونه په ډېره ښه توګه پای ته ورسېدل، په اخیرکې د وفاق المدارس العربیه کلنی امتحان ؤ، د امتحان د څارنې اونګرانی لپاره له کراچی نه علماءکرام راغلي وو په هغوعلماؤکې مولانا مفتي نظام الدین شامزي (شهید) رحمه الله هم وو، د امتحان په جریان کې یوه ورځ د وفاق المدارس العربیه له مرکزملتان نه د امتحاناتومرکزي ناظم مولانا مفتي انورشاه صاحب د یوه پلاوي په مشرئ کې په خپله د امتحان دهال د کتنې لپاره راغی هغوئ د امتحان په هال کې د امتحان جاج واخیست، په پای کې د امتحان څارونکو اونګرانانو د دارالعلوم حقانیه د اعلاناتوپه ځای کې د (هدیه تبریک) ترعنوان لاندې یوه خبرتیا ولږوله چې داسې پکې لیکلي ؤ : سږکال (شعبان ۱۴۰۴هق) د دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک د وفاق په امتحان کې ګډون کونکوطالبانوچې په کوم حسن عمل اوشرافت د وفاق المدارس د قوانینو اوضوابطوپه پابندی سره اهتمام کړی اوپه کوم ورین تندي یې چې د وفاق لارښو ونې منلي اوپه ټاکل شویو اصولوټینګ ولاړوو په دې باندې دوئ بې له شکه د مبارکی مستحق دي، په دې نظم او ضبط، امانت او دیانت باندې مونږ دوئ ته دزړه له کومې مبارکي وړاندې کوو او د دوئ د کامیابی لپاره د زړه له اخلاصه دعاء کوو، الله تعالی دې مونږټول د دین په لاره کې په هر هرګام اخیستلوکې د تل لپاره له خلوص او دیانت څخه بهره من ولري آمین، له دې سره سره مونږ د دارالعلوم له هغومنتظمینوڅخه هم مننه کول خپل فرض کڼوچې زمونږپه راسپارل شوې دنده کې یې پوره مرسته راسره کړې او د دې ارزښناک کار ترسره کېدل یې زمونږلپاره آسانه کړ، په ځانګړي ډول د حضرت شیخ الحدیث دامت برکاتهم چې کومې بې پایه پېرزوینې او له اخلاصه ډکې دعاوې مونږ ترلاسه کړې دازمونږلپاره ډېر دنېک بختی ځای ؤ، الله تعالی دې د دوئ سوری په مونږ ترډېره وخته قایم ولري آمین .

د دې هدیه تبریک په پای کې د وفد د ګډونوالو لاسلیکونه موجود وو، بیا امتحان پای ته ورسېد او زده کونکي رخصت شول؛ د شوال په میاشت کې د وفاق المدارس العربیه د نتایجو اعلان وشو، مونږ د ورځپاڼوله لارې خبرشوو، د الله تعالی په فضل اومهربانی، د استاذانو دعلومو، فیوضاتو، دعاګانو په برکت او زماپه مات ګوډ کوښښ سره ما لیکونکي (نورمحمدثاقب) ته په ټول وفاق کې لومړی درجه کامیابي ترلاسه شوې وه او د جامعة العلوم الاسلامیه بنوري ټاون کراچی زده کونکي حفیظ الرحمن دوهم او د همغې مدرسې غلام مرتضی اعوان دریم نمبرترلاسه کړی وو(الحمدلله حمداًکثیراً) د نتائجو اعلان د کراچی جنګ ورځپاڼې په ۱۵ د شوال المکرم ۱۴۰۴ هق چې له ۱۴ جولای ۱۹۸۴ میلادي سره سمون خوري او د کراچی حریت ورځپاڼې په ۱٦ د شوال ۱۴۰۴ هق چې له ۱۵ جولای ۱۹۸۴ میلادي سره سمون لري خپورکړ، دلاهورپه جنګ ورځپاڼه کې دغه اعلان دوه ورځې پرله پسې یعنې ۱۹،۱۸ د شوال ۱۴۰۴ هق چې له ۱۸،۱۷ جولای ۱۹۸۴ سره سمون خوري خپرې ده او همداراز په نورو ورځپاڼوکې هم دغه اعلان خپورشو.

مونږ به له فراغت وروسته د تدریس په ورځوکې وخت په وخت د مفتي صاحب لیدوکتوته ورتلو، د ځینو ستونزمنو مسائلوحل به مو ورڅخه ترلاسه کاوو، په ځینوکارونوکې به موله هغوئ نه د مشورې غوښتنه کوله، فیض اوبرکات به موحاصلول؛ یوځل چې زما د تدریس دوه کاله پوره شوي وو د سعودي حکومت غوښتل چې د افغانستان له اوو (۷) جهادي تنظیمونوڅخه یویوتکړه او ورعالم د مدینې منورې په جامعه (پوهنتون) کې د داخلې لپاره ور وغواړي په داسې ډول چې دوئ به هلته ځانګړې مرتبه ولري، د ځانګړې ښېګنې لائق او مستحق به وي، له ځلوروکلونوزده کړې وروسته که هلته پاتې کېدل غواړي ښه ترښه که نه نو د استازي (مبعوث) په توګه به بېرته راولېږل شي، داچې زمونږ تعلق د مولوي محمدنبي محمدي له تنظیم حرکت انقلاب اسلامي افغانستان سره ؤ له همدې امله هغوئ له ماڅخه وغوښتل چې د تنظیم له لوري ته لاړشه، تاته به د سعودي حکومت له ځانګړې پاملرنې سره سره د حرکت انقلاب اسلامي افغانستان پوره پاملرنه هم حاصله وي، د تنخواه اونورې پاملرنې سره به موتړهم ولرې، اوس یوازې لاړشه اوکه کورنۍ دې درسره بو ول غواړې نوپه شپږومیاشتوکې به یې دننه د سفر اسناد جوړشي شپږمیاشتې وروسته هغوئ هم له ځان سره بوزه؛ زه مفتي صاحب ته ورغلم هغه ته مې خبره وړاندې کړه اومشوره مې ورنه وغوښته، حضرت مفتي صاحب و ویل په دې کې به دعلمي ګټې پرځای علمي تاوان وي، همدلته تدریس کوه په دې کې به دې پرمخ تګ وشي، هو! یوه ګټه په تګ کې شته چې حج به وکړې خو د حج لپاره به له دې ځایه هم لاره درپیداشي(ان شاء الله) ما د حضرت مفتي صاحب په مشوره باندې په کلکه عمل وکړ اوهغوخلکوته مې جواب ورکړ، الله تعالی حاضر اوناظردی چې زما د زړه لېوالتیاهم د نه تګ لورته وه ځکه چې زما د دې ځای له تدریس سره ډېره مینه وه، د مفتي صاحب د رسا اوصائبې رایې په پوهېدوسره زماپه رایه کې قطعیت راغی او زړه ته مې ډاډحاصل شو؛ له هغه وروسته لکه څرنګه چې مفتي صاحب ویلي وو ډېر زر او په ډېره اسانۍ سره الله تعالی د حج نیک بختي را وبښله .

مفتي صاحب ته الله تعالی د زهد، په الله جل جلاله د توکل او الله تعالی ته د رجوع کولو ژوند وربښلی ؤ، کله چې شیخ المشائخ بقیة السلف شیخ الحدیث مولاناعبدالحق صاحب له دې فاني نړۍ رخصت شو نومولوي محمدنبي محمدي صاحب د حرکت انقلاب اسلامي افغانستان مشر و ویل چې د شیخ صاحب رحمة الله تعالی علیه په ژوند کې زماغوښتنه وه چې جناب مفتي صاحب خپلې مدرسې ته راولم خوما داخبره ځکه نه شکاره کوله په دې پوهېدم چې شیخ صاحب رحمه الله به سخت خپه شي، اوس زه غواړم چې مفتي صاحب خپلې مدرسې جامعه اسلامیه محمدیه ته (چې د پیښورپه چراټ روډ واقع ده) د شیخ الحدیث او صدرالمدرسین په توګه راولم، د دې کارلپاره زه ( نورمحمدثاقب د جامعه محمدیه مدرس)، بل د مدرسې ناظم او یوبل عالم مفتي صاحب ته ور ولېږل شوو او دایې هم راته و ویل چې مونږ به جناب مفتي صاحب ته د میاشتې لس زره (۱۰۰۰۰) روپۍ ورکوو بلکه هغه ته به اختیار وي چې هغه څومره غواړي هغومره تنخواه به یې مونږ ته د منلو وړوي اوحال داچې هغه وخت په دارالعلوم حقانیه کې د مفتي صاحب تنخواه اتلس سوه (۱۸۰۰) روپۍ وه؛ مونږ مفتي صاحب ته ورغلو په ډېر ادب او درناوي مو د مولوي محمدنبي محمدي صاحب پیغام ورته ورساؤ، مفتي صاحب و ویل مقصد دعلم او دین خدمت ده اوجامعه حقانیه کې دامقصد ښه ترسره کېږي اوتنخواه خومقصدنه ده ځکه نو دلته په کمه تنخواه هم خوښ یم، دایې هم و ویل چې مولاناعبدالحق صاحب رحمة الله تعالی علیه په روغتون کې د خپل ژوند په وروستي وخت کې چې غږیې هم ټیټ شوی ؤ اوخبرې یې سمې نشوای اورېدل کېدې زه یې په اشاره ور

وغوښتلم چې رانزدې شه زه چې ورنـزدې شـوم نـو وې ويـل داګاډي روان وساته پرېږده يې مه، مراديې په حقانيه کې د تـدريس وو؛ پـه دې ډول د مولـوي محمـد نبـي محمـدي صاحب داهيله پوره نه شوه؛ مفتي صاحب به ويل چې زه د تنخواه له امله اويا له کوم شرعي عذرپرته بلې مدرسې تـه نه يم تللى، د يوه شرعي عذرپربناء د جامعه اسلاميه اکوړه خټک څخه دارالعلوم اسلاميه چارسدې ته لاړم، بيالـه هغـه ځـاى څخـه د شرعـي عـذر لـه املـه او د مولاناعبـدالحق صـاحب رحمـه الله پـه بلنـه، د مولاناعبـدالمالک صـديقي صاحب رحمـه الله پـه امـر او د مولاناغورغشـتوي صـاحب رحمه الله په اشاره دارالعلوم حقانيه ته راغلم.

ما(نورمحمدثاقب) به له تدريس سره سره بېلابېل غير درسي کتابونه هم کتل اومطالعـه کـول چې پـه هغـوکې بـه اکثر د فقهې اوفتاوى وو کتابونه وو، ما به له هغونه مسـائل ليکل په ډېرومسائلوکې به مې دثبـوت او عـدم ثبـوت او د ثبوت په صورت کې د قوت اوضعف د معلومولوپه لټه کـې د فقهې اوفتوى له قواعدوسره سم مستند او باوري کتابونه کتل اوهغه مسائل به مې له ځان سره ليکـل، پـه دې ډول د ډېـــرو زياتومســـــائلوڅېړنه وشـــوه او د هغوڅرنګوالى څرګندشو؛ يـوه ورځ چې زه د مفتـي صاحب ليدوته ورتلم نوهغه مسائل مې هـم لـه ځـان سره واخيسـتل چـې کېـداى شي دغـه مسائل مفتـي صـاحب تـه ور وښـودلى شـم کـه د څـه تنبيهـاتو اوهـداياتوضرورت وي نـومفتي صـاحب بـه يـې راتـه وکړي، د ملاقات په وخت مفتي صاحب هغه مسـائل وليدل او وې فرمايل چې ډېرښه، داکارکوه او دې تـه دوام ورکړه نوبياما وپوښتل چې جناب نن سبا خلـک کراچـى، لاهـور، ملتـان يانوروځـايونوکې پـه افتـاءکې تخصـص کـوي داڅرنګـه ده؟ مفتـي صـاحب و ويـل داهيڅ هم نـه دي، پـه دې ډول د افتـاء صلاحيت او وړتيانـه پيـداکېږي داصـلاحيت اوهليـت داسـې پيداکېږي چې څوک فقهـه ښـه و وايـي، د فقهـاء کرامولـه قواعدو اوضوابطوسره سم ممارست وکړي او پـه هغـه کـې فقهي ذوق اوقوت پيداشي، بياما ورته و ويل چې په پاى کې هغـوى تـه سـندونه ورکـول کېـږي اوهغـوئ وايـي چـې مونږمفتيان شولو؛ مفتي صاحب و ويل چې زماله لوري تاته د افتاء اجازه ده، ستالپاره به زه سندليکم، بيامفتي صاحب په خپلومبارکولاسونو په ۱۴ د صفرالمظفر۱۴۱۴ هق چې له ۳ اګست ۱۹۹۳ ميلادي کال سره سمون لري زمالپاره د افتاء سند وليکه، دا د حضرت مفتي صاحب له لوري په ماباندې د اعتماد اوباورڅرګندونه وه (الحمدلله علـى ذالـک) مفتـي صاحب د خپل عادت اومعمول خلاف په ځانګړي ډول مـا بنده ته د افتاء سند راکړ ځکه چې مفتي صاحب هيچاته د افتاء سند نـه ورکـاؤ، د مفتـي صـاحب لخـوا پـه خپـل لاس مبارک ليکل شوى د افتـاء سـند د انځورپـه بڼـه پـه لانـدې ډول ده چې پـه (تجليـات فريـدي) نـومي کتـاب کـې هـم خپورشوى دى.


بسم الله الرحمن الرحيم
الحمد لله وسلام على عباده الذين اصطفى اما بعد فقد استجازني
الاخ في الله مولانا المفتي نورمحمد الثاقب الافغاني الحقاني للافتاء فاجزته و
اجبته له و اوصيته ان يبذل جهده في الجوابات ويروي
عن الكتب المعتبرة من الفقه ويذكر الدلائل او يشير اليها ولا يخرج
من المذهب الا عند الضرورة كما صرح به مشائخنا - والخروج عند
الضرورة هو مسلك مشائخنا فيكون في الحقيقة مذهبنا وهو الموفق -

ماله جناب مفتي صاحب رحمه الله سره په ۱۹ دشعبان

۱۴۰٦ هق کال په دارالعلوم حقانیه کې بیعت وکړ مفتي صاحب د سلسلې مبارکې د پنځم فصل په پای کې په خپل لاس مبارک زمانوم ولیکه اولاسلیک یې وکړ بیایې هغه سلسله مبارکه ماته راکړه، د نقشبندیې سلسلې د ټولوسبقونوله پای ته رسېدو وروسته یې په ۵/ د رجب ۱۴۱۵ هق کال په خلافت ونازولم، خپله یې سند ولیکه او راته وې سپاره، ځوکاله وروسته یې په پاتې نوروسلسلو(چشتیه، قادریه اوسهروردیه) کې هم پوره اجازه راته وکړه .

مفتي صاحب مبارک ته الله تعالی بې شمیره کمالات، خصوصیات اولوړې مرتبې ورکړې وې، مونږکه څومره هم کوښښ وکړوچې د هغو بیان وکړوبیاهم په هغو داجمله په ښه توګه صادقېږي ( ماستر اکثرممّاسُطِرَ) څه چې پټ پاتې شول هغه ډېردي له هغه نه چې ولیکل شول، مفتي صاحب په یوه وخت کې لوی محدث، د وخت سترفقیه، لوی مفتي، د طریقت شیخ، د الله پېژندونکی، د لوړې کچې مصنف، د ډېروشاګردانو اومریدانولرونکی شخصیت وو، دغه ټول صفات په یوه کس کې راټولېدل ستونزمنه اولرې خبره ده خو دغه ټول صفات الله تعالی په مفتي صاحب کې په بشپړ اوپوره ډول راټول کړي ؤ، مونږ ویلی شوچې دهغه نوم ښه ورباندې برابرشوی او(فرید العصر) وو.

مفتي صاحب له فراغت نه درې کاله وړاندې تدریس پیل کړی وو، له فراغت نه وروسته یې یوکال په خپل پلرني کلي کې تدریس کړی، له هغه وروسته یې ۹ کاله په جامعه اسلامیه اکوړه خټک کې تدریس وکړ، بیا د شرعي عذرپربناء یې د جامعه اسلامیه اکوړه خټک نه استعفاء وکړه اودرې کاله یې په دارالعلوم اسلامیه چارسده کې د حدیثو د استاذ او د استاذانو د مشرپه توګه تدریس وکړ، بیایې له ځینو دوستانوسره د اړیکو د ترینګرتیاله وېرې د شیخ الحدیث مولاناعبدالحق صاحب رحمه الله په بلنه، د صالحینو اوعلماؤ دامام مولاناعبدالمالک صدیقي رحمه الله په امر او د محدثینو د ښکلا مولانا نصیرالدین غورغشتوي رحمه الله په غوښتنه په ۱۳۸۵ هق کال کې دارالعلوم حقانیه ته راغی او دلته یې ۳۲ کاله د احادیثو درس وکړ .

په ۱۹۹٦ میلادي کال چې له ۱۴۱۷ هق کال سره سمون خوري په مفتي صاحب باندې په دارالعلوم حقانیه کې دګزڼ ناروغي راغله چې له ناچارۍ یې تدریس پرېښود، د تدریس په زمانه کې په زرګونوطالبانوله هغوئ نه علم اوفیض ترلاسه کړ، اولکه څرنګه چې ماپه پیل کې یادونه وکړه چې د مفتي صاحب درس ډېر دقیق، جامع اوله فیضه ډک ؤ، نو د مفتي صاحب شاګردانو د الله تعالی په فضل د ژوند په هرډګرکې ښکاره اوغټ کارونه ترسره کړي، که هغه د تدریس ډګرده او که د سیاست، د جهاد ډګرده اوکه د دعوت اوتبلیغ، د طریقت ډ ګرده اوکه د نورو دیني اوټولنیزوخدمتونو، هغوئ ته داسعادت او نېک بختي د مفتي صاحب د صحبت له امله ورپه برخه شوې، د مفتي صاحب شاګردان په ټوله نړۍ کې خواره دي په ځانګړي ډول د پاکستان او افغانستان په ګوټ ګوټ کې شته، همداډول په نزدې هېوادونوکې هم ډېردي،بلکه په لرې پرتوهېوادونوکې هم شته، د بېلګې په توګه ماپه خپله په قطر، سعودي عرب، د اروپا هنګري (مجارستان) کې د مفتي صاحب شاګردان علماء لیدلي دي، اولکه څرنګه چې مونږټولوته معلومه ده چې په متحده عرب اماراتو، جنوبي افریقا، لندن، امریکا او داسې نوروهېوادونوکې د هغوئ لوی لوی شاګردان علماء شته،د مفتي صاحب مریدان اوخلیفه ګان ډېرزیات دي چې په هغوکې اکثریت دعلم خاوندان دي، په هرځای کې اوپه ځانګړي ډول په پاکستان او افغانستان کې اکثرعلماء د مفتي صاحب سره دوه نسبتونه لري یو دعلم له پلوه چې داعلماء د مفتي صاحب شاګردان دي دوهم د سلوک اوطریقت له پلوه چې داعلماء د مفتي صاحب مریدان اوخلیفه ګان دي.

مفتي صاحب د افتاء کارهغه وخت پيل کړی ووچې د دوره حديث شاګرد وو، مفتي صاحب به په خپله ويل کله چې زه په غورغشتوکې د دوره حديث طالب وم نومولانانصيرالدين غورغشتوي صاحب به په مابانديې د استفتاء ګانوجوابونه ليکل، کله چې بياپه جامعه اسلاميه اکوړه خټک کې مدرس شوم نومولاناعبدالرحمن کاملپوري رحمه الله (د حضرت تهانوي رحمه الله خليفه اجل او د سهارنپور دمظاهرالعلوم مدرسې د استاذانوپخواني مشر) ماته و ويل چې د سوالونو جوابونه ته ليکه، هغوئ به زما ليکل شوي جوابونه ډېرخوښول، بياپه دارالعلوم چارسده کې هم داکارماته راوسپارلی شو، کله چې دارالعلوم حقانيه ته راغلم نودلته په يوه واړه غونډې د يادانښت کتاب(رجسټر) کې ځوفتوی ګانې ليکلې وې، له همدې امله مې دلته د افتاء کار په مستقل ډول شروع کړ، مفتي صاحب په دارالعلوم حقانيه کې په ۳۲ کاله کې يولک کم اوزياتې فتوی ګانې ورکړي دي چې د ترتيب اوتخريج کارېې روان دی، تر اوسه اته جلدونه ( ټوکه ) چاپ او د خلکومخې ته راغلي، چې د عاموخلکو اوخواصوترمنځ په يوه ډول مقبولې دي، په نورو ټوکونوباندې کار روان دی، په ترتيب اوتخريج کې د احتياط له امله ډېروخت لږېږي، د مفتي صاحب رحمه الله فتوی ګانې انتهايي درجه قوي، محکمې اومدللې وي چې له ډېرغور اوځېړنې وروسته ليکل شوي، له همدې امله د (رجوع کولو) وارندی راغلی، مفتي صاحب ته الله تعالی د فتوی اوپرېکړې لپاره د حيرانتيا وړپوهه ورکړې وه کوم موضوعات اومسائل چې ډېرپېچلي اونه حل کېدونکي ښکارېدل مفتي صاحب به هغه په ډېره آسانی سره حل کول، مونږ ويلی شوچې علم او فقاهت د هغوی دويم طبيعت ګرځېدلی ؤ اوهغه ريښتينی فقيه النفس ؤ، د هغوئ فتوی ګانې له پاکستان پرته په د باندنيوهېوادونوکې هم مقبولې اوپه زړه پورې دي او د هېواد د ننه خويې دا حال ده چې عوام خولاځه چې علماء هم په يوه مسئله کې هغه وخت ډاډ من کېږي چې په هغې مسئله د مفتي صاحب فتوی موجوده وي اوياپې تائيدکړي وي، په عامه توګه نورومدارسوکې د مفتيانو او دارالافتاء ګانوله شتون سره سره په مشکلومسائلوکې به هغوئ مفتي صاحب ته رجوع کوله، ما د ۱۹۸۸ ميلادي کال د اګست په مياشت کې چې د ۱۴۰۸ هق کال له ذوالحجې سره سمون خوري لاهور، ملتان، کراچۍ او داسې نوروځايونوته سفر وکړ، بيامې د ۱۹۹۱ ميلادي کال د اپرېل په مياشت کې چې له ۱۴۱۱ هق کال د شوال له مياشتې سره سمون خوري آزاد کشميرته سفروکړ، همدارنګه مې د ۱۹۹۳ ميلادي کال د اپرېل په مياشت کې چې له ۱۴۱۳ هق کال د شوال له مياشتې سره سمون خوري سيالکوټ، لاهور، خانېوال او د داسې نوروځايونوسفر وکړ ترڅو دهغوځايونومدرسې وګورم او د هغوځايونوله شيخ صاحبانو اوعلماءکراموسره ليده کاته وکړم، هلته ما د مفتي صاحب فتوی ګانې وليدې چې په مشکلو او اهومسئلوکې ترلاسه شوې وې .

د مفتي صاحب ليکنې او تصنيفات ډېر دقيق، جامع، باوري، ګټور اوټول خوښي دي چې په څو څو واره چاپ اوخپاره شوي دي، په ځانګړي ډول منهاج السنن شرح د جامع السنن للترمذي، هداية القاري على صحيح البخاري او فتح المنعم شرح د مقدمه د صحيح مسلم له لنډوالي سره ډېرزيات کره، ژور اوجامع دي چې هريو د لويو شروحولنډيز اوله هغونه بې پرواکونکی او د پخوانيومشرانومحدثينو داماللي وو نچوړ ده، هريوکتاب يې د بحرپه کوزې کې ښه مصداق ده او د علماؤ اوطالبانولپاره بې کچې ګټوردی؛ منهاج السنن چې په پنځوجلدونوکې ده، په ټولو اهموحديثي اوفقهي مباحثوباندې مشتمل ده، همهاله د حديثو د شرحې اوفتاوی حيثيت لري، همدارنګه "البشری لارباب الفتوی" د فتوی په اصولو اوضوابطوباندې مشتمله لنډه اوجامع رساله ده چې په لسوفصلونومشتمله ده، مفتي صاحب به د دې په کتلوټينګارکاؤ او ويل به يې

چې داماپه ډېرې خوارۍ ليکلې ده، همدارنګه د هغوئ نورتصنيفونه هم انتهائي باور ي اوګټور دي او د هغوئ د فتاوى وو يادونه خو وړاندې وشوه چې اته غټ جلدونه يې خپاره شوي اوپه پاتې جلدونوېې کار روان دی .

اوس له حضرت مفتي صاحب سره د ځوملاقاتونو يادښتونه قلم ته سپارم

د ۱۴۲۳ هق کال د محرم الحرام د مياشتې په ۱۸ چې د ۲۰۰۲ ميلادي کال د اپرېل له اولې نېټې سره سمون خوري د دوشنبې په ورځ له خپلوځوتنو دوستانو اوخپلوانوسره د مفتي صاحب د ليدولپاره زروبۍ ته لاړم د خبروپه مهال مفتي صاحب په خپله خپل عمرښکاره کړ او وې ويل اوس مهال زماعمر ۸۴ کاله ده ځلورکاله وړاندې د اتيا (۸۰) کلونوپه عمرماته د ګزن ناروغي پېښه شوه، مفتي صاحب په دې غونډه کې نورې هم ډېرې حکيمانه، ځېړنيزې او اغېزمنې خبرې وکړې چې مونږ ته ترې ډېرې فائدې، د زړه خوښي او فيض حاصل شو .

په ۱۱ د ذوالقعدې ۱۴۲۴ هق کال چې له ۳ جنوري ۲۰۰۴ ميلادي کال سره سمون خوري د هفتې په ورځ زه له خپلوځه ملګرو اوعلماؤ اوطالبانوسره د مفتي صاحب دليدولپاره ورغلم په دې ليدنه کې ځينې دوستانومفتي صاحب ته و ويل چې په کراچۍ کې يوډاکټر د ګوزڼ ډېره ښه درملنه کوي اوپه هغه ډېره ګټه ګونه وي، که تاسوته منظوره وي نولګښت به مونږپه غاړه واخلو، په موټروغيره کې به تکليف وي د طيارې ټکټ به واخلو، په دې خبره مفتي صاحب ماته مخ کړ او وې ويل چې روغتياخو د دين د خدمت لپاره اړينه وي چې انسان د دين خدمت وکړي، کوم څه خدمت چې له مانه شوی هماغه بسنه کوي، ۹ کاله په جامعه اسلاميه اکوړه خټک کې، ۳ کاله چارسده کې او ۳۲ کاله مې جامعه حقانيه کې تدريس کړی همدا کافي دی، اوس هم په چپ لاس ليکنه کولای شم، بس تاسو دعاء راته کوئ، زماهم عمره علماء هم اکثر په همدې ناروغۍ اخته وو چې اوس له دې نړۍ څخه رخصت شوي دي يوهم له هغوی نه ندی پاتې، دوئ نورې هم ډېرې ګټورې او اغېزمنې خبرې وکړې، په پای کې جناب مفتي صاحب جهاد، مجاهدينو اوطالبانوته دعاء وکړه .

په ۲۴ د جمادی الاولی ۱۴۲۵ هق کال چې له ۱۱ جولای ۲۰۰۴ ميلادي کال سره سمون خوري ديکشنبې په ورځ له ځوتنوخپلوانو اوملګروسره مفتي صاحب ته زروبۍ ته ورغلم، د خبروپه مهال ماله مفتي صاحب نه پوښتنه وکړه چې پښتوژبې ته ( سُليمانيه ) ولې وايي؟ لکه څرنګه چې ستاسود کتاب نوم ده "العقائد الاسلامية باللغة السليمانية" مفتي صاحب و ويل چې هغه غريزه لړۍ چې له هندوستان څخه پيل شوې په کشميرتېره شوې بيا افغانستان ته تللې هغه ته د سليمان غر وايي، له دې لړۍ سره پښتانه آباد وو له همدې امله د هغوئ د ژبې نوم سُليمانيه شو، بنده عرض وکړهغه هندوکش چې ويل کېږي؟ هغه و ويل هوکې! لکن دا هندوکش د کاف په زور سره ده يعني له هند اوکشميرنه راتېرشوی، خلک هندوکش د کاف په پيش سره وايي، بنده پوښتنه وکړه چې د بخاري شريف له شروحو فتح الباري اوعمدة القاري له کتلو اومطالعې وروسته بله کومه يوه شرحه د مطالعې لاندې نيول پکار دي؟ هغه و ويل " قسطلاني" (ارشاد السّاري للقسطلاني) بيايې هغه نکل وکړ چې دعلّامه عيني رحمه الله او د فتح الباري د څښتن ښځې سره خويندې وې، ابن حجر رحمه الله به چې څه ليکل علّامه عيني رحمه الله به ليدل، همدالامل ده چې په فتح الباري کې چې هغه ځومره نيوکې په احنافوباندې کړي دي هغه ټولې په عمدة القاري کې سره له جوابونوموجودې دي، ما بيا پوښتنه وکړه په صحاح سته کې چې سنن نسائي شامل ده آياهغه سنن صغری ده، کوم چې مجتبی ده او ټول سنن کبری خوپه صحاحوکې شامل نه دی؟ هغه و فرمايل هوکې! دا سنن صغری ده يعني مجتبی، ټول سنن کبری نه ده؛ بيامې پوښتنه وکړه

سنن بيهقي څرنګه ده؟ د دې له احاديثونه په ډاډګيرنې او باورسره استدلال کېدلای شي؟ مفتي صاحب و ويل ترکومه ځايه چې د مذهب خبره ده نو زمونږ د مذهب خپل اصول اوتحقيقات دي کوم چې په نظرکې نيول کېږي اوترکومه ځايه چې له هغه نه د استدلال خبره ده نوله هغه نه استدلال کېدلای شي، بيايې خپلې الماري ته اشاره وکړه وای هغه ده لماسره ايښې ده، کله چې ما د طبراني په اړه وپوښتل چې د صغير، اوسط اوکبير ترمنځ کوم يو انتخاب شي؟ نوهغه و ويل: له ماسره صغيروي، په خبروخبروکې يې و ويل چې د فتاوى فريديه دوهم جلد باندې کارتمام شوی اوس به يې د چاپولولپاره لاهورته يوسي، له مفتي صاحب سره د فتاوى فريديه لومړی جلد ايښې ؤ د هغه په پای کې د مسائل شتّى په اړه مفتي صاحب راته و ويل : دامسائل ماپه دې ناروغۍ کې په چپ لاس ليکلي دي دا مسائل په غيرمقلدينوباندې ډېردرانه دي، لکه د مړي مخ کتل او داسې نور، زياته يې کړه چې د دوهم جلد مسائل شتّى مې هم په خپله په چپ لاس ليکلي دي، کله چې د درې مياشتنۍ " دُرُالفريد " رسالې يادونه وشوه، ما ورته و ويل چې په دې کې هم د دين خپراوی په ښه ډول کېږي، د دارالافتاء ترسرليک لاندې د مسائلوخوراغوره حل او نورمعلومات ښونکي مضامين هم پکې وي، نوهغوئ وفريل چې دا د دارالافتاء ترسرليک لاندې مسائل زه په خپله ليکم، بيا د شينل کمپنۍ يادونه وشوه، مفتي صاحب په خپل دريځ ټينګ ولاړ وو، داسې يې و ويل: په دې کې نه سود شته، نه رشوت اونه بل کوم شی، ځينې خلک چې له مانه په عمرکې واړه دي اوتدريس يې هم کم کړی هغوئ د ناروا والي خبره کوي، يوځل يې داهم و ويل چې په اکوړه خټک کې ځينې نوي ځوانان په دې مسئله کې اختلاف کوي مونږته د خلکوپروانه راځي مسئله همدغه ده که ټول هم مخالف شي نوشي دې، بيايې مولاناحسين احمدته و ويل چې دامسئله خپره کړی، بيامفتي صاحب يوه بېلګه وړاندې کړه چې د حيات النبي صل الله عليه وسلم په مسئله کې مولاناغورغشتوي صاحب رحمه الله اومولانا بهبودي صاحب (مولاناعبدالرحمن کاملپوري) رحمه الله يوه لورته وو اونورټول مخالف وو چاچې د برزخي ژوند مطلب اخيسته، بنده (نورمحمد ثاقب) په دې موقع و ويل چې بعضې باريکيوته خلک پام نه کوي، دېته ورته نورې مسئلې هم شته د بېلګې په ډول د غاښونو ډکولومسئله، په روزه کې د ستنې لګولو مسئله، دروپيو د بدلولو اوداسې نورې .

په ۹ د شوال ۱۴۲۵ هق کال چې له ۲۱ نومبر ۲۰۰۴ ميلادي کال سره سمون خوري له خپل زوئ اونوروخپلوانو طالبانوسره د مفتي صاحب د ليدنې لپاره زروبۍ ته لاړم، د خبروپه مهال مفتي صاحب و ويل الله تعالى دې امريکا برباد اوپوپناکړي، يواځې دلته نه بلکه په سعودي کې هم دخپلو ناپاکو ارادو تکميل کوي، پرون د دارالعلوم صديقيه يومدرس له عمرې نه راغی هغه و ويل چې امريکا د سعودي حکومت ته و ويل چې جهادي آياتونه له نصاب څخه وباسی، هغوئ و وېستل، بيايې ورته و ويل چې له قرآن څخه يې هم وباسی، هغوئ ورته ويلي چې دا زمونږ د وس خبره نده؛ د غونډې په مهال د فتاوى فريديه دوهم جلد چې د مفتي صاحب په وړاندې پروت ؤ، راوايې خيست او وې ويل چاپوښتنه کړې چې د زرو روپيو بانک نوټ د لسو روپيو د بانک نوټ په بدل کې ورکول روا ده که ناروا؟ ما په جواب کې ورته و ويل چې شرعا دابلکل روا ده، ځينې خلک په خپل عرف کې دې ته ناروا وايي او وې ويل چې دا په فتاوى (فريديه) کې هم راغلې، او هغه ځای يې ماته را وښود، زه بنده داسې وايم چې دا د مفتي صاحب عجيب فراست اوبصيرت ؤ اوزمالپاره د بانک نوټ په دې مسئله کې د پخوا په څېر يوځل بياد دوئ لخوا تائيد ؤ، په خبروخبروکې مې ورته و ويل داسې ښکاري چې سږکال د پګړۍ تړلوپه مهال تاسو دارالعلوم حقانيه ته نه واست تللي! هغوئ و ويل چې يوازې سږکال نه وم تللی ځکه چې هلته

انځور وېستنه ډېره زياته وي، ما ورته و ويل چې طالبان ستاسو راتلوته هيله من وي خوهغوئ د طالبانوكارخراب کړ، همدارنګه مې د چراټ د ستاربندي ورپه ياد کړه، چې هلته به تېرځوکلونه په پرله پسې ډول د ټول صوبه سرحد د فارغانو د پګړۍ تړلوپروګرام د حرکت انقلاب اسلامي د تنظيم له لوري ترسره کېده، اوهلته به هم انځور اخيستنه کېده نوتاسوهلته په خپل تقريرکې و ويل چې د انځورونو د وعيد ( د سزاوركونې ) حديثونه خوزاړه شوي نه دي، بيا تاسوله هغې وروسته هلته هم د نه تللوپرېکړه کړې وه، مفتي صاحب و ويل ما ډېرتدريس کړی هغه کافي ده، بس اوس زمارخصتي ده، ما ورته و ويل داهم ډېره ده چې ستاسوفتاوی د ترتيب او تخريج له پړاوځخه ستاسو د سترګوپه وړاندې تېرېږي اولکه څرنګه چې تاسوځه موده وړاندې ويلي ووچې تاسو مسائل شتّی په خپله په چپ لاس ليکلي دي داهم لوی کارده، هغوئ په سر سره اشاره وکړه او وې ويل هوکې، مفتي صاحب د ليدنې په مهال و ويل په پخوانيوفتاوی ووکې يوه نيمه داسې خبره راشي چې هغه د احنافومذهب نه وي خوهغه خلک بياهم په هغې باندې ټينګ ولاړوي، مونږ د چانوم نه اخلو، مونږهغه خبره پرېږدو د احنافوخپل اوسم قول خپلوو، مونږپه حنفيت ټينګ ولاړيو اوهغوئ په خپله خبره، بيايې په سخته لهجه و ويل چې زمونږله اهل حديثوسره ځه کارده .

د ۱۴۲٦ هق کال د محرم الحرام د مياشتې په ۲٦ چې د ۲۰۰۵ کال د مارچ له ٦ نېټې سره سمون خوري د يکشنبې په ورځ زه له خپلوځوملګروسره د مفتي صاحب د ليدولپاره لاړم نوما د مفتي صاحب په وړاندې د اصولِ حديثو د کتابونو يوه لړۍ ياده کړه چې دا له ماسره شته او اوس مې ستاسو افادات " الفرائد البهيّة الی احاديث خيرالبريّة " هم له دارالعلوم صديقه ځخه ترلاسه کړ، اوس مې مطلب داده چې تاسونه پوښتنه وکړم چې د اصول حديث په کتابونوکې کوم ډېرزيات ګټور او ارزښمن دي، له ځه غور وروسته مفتي صاحب و ويل " اصول البزدوي " چې حنفي هم ده، ما ورته و ويل "اصول السرخسي " ځرنګه ده هغه هم راسره شته ده، مفتي صاحب و ويل هغه هم ښه ده، بيامې ورځخه وپوښتل چې ترمذي، سنن دارمي اوهمدارنګه تفسيرقرطبي او نوروکتابونوچې کوم حديث راوړی دی : ( داهم له فتنوځخه ده چې قاريان او د قرآن حافظان به ډېر وي، فقهاء به کم وي، وړوکی وي که غټ، ليدونکی وي که ړوند، نارينه وی که ښځينه قرآن به يادوي خوعمل به نه وي) نوپه اوسني حالت اورجحان که نظر واچول شي دا د امت لپاره ځرنګه ده، اوکه ځوک خپل اولاد يانورخپلوان د قرآن حافظان جوړ ول غواړي دا ځرنګه ده؟ مفتي صاحب له يوځه چوپتيا وروسته و ويل فتنه خوده! ، ما ورته و ويل يعني داغوره ده چې هغوئ ته مسائل ور وښودلای شي او د علم په زده کړه کې يې بوخت کړي؟ مفتي صاحب و ويل هوکې .

د ۱۴۲۷ هق کال د ربيع الثاني په ۱۲ چې د ۲۰۰٦ ميلادي کال د مئي له ۹ نېټې سره سمون خوري د سه شنبې په ورځ زه د مفتي صاحب له ځه شاګردانو اوعقيدت منوعلماؤ اوطالبانوسره د مفتي صاحب د ليدولپاره زروبی ته لاړم هلته چې ورسېدو له مولانا حسين احمدصاحب نه مو معلومه کړه چې په مفتي صاحب باندې بيا د ګوزڼ ناروغي راګرځېدلې ده، په پېښوركې ځلور ورځې په روغتون کې له بسترېدا وروسته بېرته کورته راغلی ده، خو اوس خبرې نه شي کولای، مفتي صاحب هغه وخت په جومات کې وو، د ماسپښين له لمانځه وروسته موله مفتي صاحب سره وليدل مفتي صاحب په ګوته د ژبې لورته اشاره وکړه او لاس يې په نفي باندې وښوراوه چې خبرې بندې شوي دي، په دې مونږ ډېرزيات غمجن شولو، ما مفتي صاحب ته و ويل داسې ښکاري چې الله تعالی تاسوته ډېره لويه بدله اوثواب ليکلی ده اوهغه ستاسولپاره پوره کېږي، مفتي

صاحب اول مسکی غونډې شو بیایې حالت د ژړاغونډې شو.

اوس به د یوڅو خوبونو یادونه وکړم چې ماپکې خپل ځان اونورعلماءکرام له مفتي صاحب سره لیدلي دي.

د ۱۴۲۹ هق کال د ربیع الاول د میاشتې په ۱۰ نېټه چې د ۲۰۰۸ میلادي کال د مارچ له ۱۷ سره سمون خوري د دوشنبې په ورځ مې قیلوله کوله چې خوب مې ولید مفتي صاحب او د هغه ځینې شاګردان علماء دي، مفتي صاحب له هغوئ سره خوش طبعي کوي، مفتي صاحب یوکس په دا ځنګ ( په تشي ) کې د ګوتې په څوکه چوخ کړي او ورته وایي چې ځنګه یې؟ هغه کس په خندا ورته و وایي چې حال خراب دی، مونږټول خاندو مفتي صاحب هم خاندي، بیا بل کس په داتشي کې همداسې د ګوتې په څوکه چوخ کړي او ورته وایي ځنګه یې، هغه هم همدغه جواب ورکړي، مفتي صاحب اومونږټول خاندو، د ډېرې خندا له وجې زه راویښ غونډې شوم بیاګورم چې مونږ له چای سره بادام خورو زه له مفتي صاحب سره نزدې ناست یم قاب هم نزدې راسره ایښی وي اوځینولرې ناستوخلکوته له دې قاب نه لږلږنوربادام ورکوم اوپه هغوئ کې دوه کسه داسې وي لکه په کټونوچې پراته وي زه هریوه ته نوربادام ورکوم، بیاله خوبه راویښ شوم. سبحان الله والحمدلله .

د ۱۴۳۰ هق کال د روژې مبارکې په ۲۱ چې د ۲۰۰۹ میلادي کال د ستمبرله ۱۱ سره سمون خوري د جمعې مبارکې ورځ وه د پېشلمي په مهال مې تهجد، صلاة تسبیح اویوه پاره تلاوت وکړ ( الله تعالی دې قبول کړي ) بیا د سهار له لمانځه وروسته پرېوتم په داسې حال کې چې ډېر پرېشان وم چې مسلمانان په څومره مشکلوحالاتوکې دي، د کفارو او د هغوئ د ملګرو د ظلمونولاندې راغلي دي

اوهمدارنګه ځینې نورې پرېشانۍ هم وې، خوب مې ولید چې د اختر د لمانځه په څېر په د ښته اوپټوکې په اوږدوالي خوره یوه لویه غونډه او اجتماع وي، غالبا چې ټول علماء وي، داسې برېښي چې یوکار اونظام چلېږي اوزه د هغه له خاصو اراکینوڅخه یم، او اوس د دې کار اونظام لپاره په دې اجتماع کې د مرکزي امیرټاکنه کېږي، زه د دې اجتماع په غاړه غاړه روان یم د اجتماع د سرلوري ته ځم، زما په لاس کې د رنګ دوه بوتلونه وي چې غالبا یو سپین او بل تور وي کله چې د غونډې او اجتماع سرته ورسېږم هلته یولاوډ سپیکرلږېدلی وي اویوعالم ورسره ولاړوي، داسې ښکاري چې مفتي صاحب مبارک دی، وروسته بیا داسې ښکاري چې زمونږ بل استاذ دی ، په دې اجتماع کې ډېر معتبر، مخور او سپینږیري علماء موجود وي، زه چې کله د اجتماع سرته راورسېږم نوجناب مفتي صاحب او په اجتماع کې موجود نورعلماء کرام د بنده په اړه وا یي چې د ده په څېرېې څوک کولای شي! بس همدی د دې کارلپاره متعین دی، نو ټولوپه اتفاق سره زه مرکزي امیر وټاکلم اومسؤلیت یې را له غاړې کړ، زه دغو علماء کراموته د رنګ دا دواړه بوتلونه ور وښیم چې مادا را اخیستي وو ما ویل کېدای شي پکارشي ، بیازه هغه وخت له خوبه رابیدار شوم. سبحان الله والله اکبر

په پای کې دعاء کوم چې الله تعالی دې حضرت مفتي صاحب رحمة الله تعالی علیه همېشه په لوړو درجو او مرتبو فائز ولري او ربّ کریم دې د دوئ ټول کړي علمي او روحاني خدمتونه په قبولِ حسن سره قبول کړي او مونږ ته دې د دوئ له هدایاتو، علومو او فتاوا وو څخه د پوره استفادې کولو توفیق رانصیب کړي. آمین

## دملکي تلفاتو په اړه دملکي تلفـــاتو دمخنيوي اداري د کال ۲۰۱۵ کلنی راپور

لکه څرنګه چې تولو ته معلومه ده له کله نه چې د افغانستان د اسلامي امارت د مشرتابه لخوا د رهبري شورا له حکم سره سم د نظامي چارو په کميسيون کې د ملکي تلفاتو اداره جوړه او تاسيس شوه او په شپاړسو مادو کې د دوی لپاره يوه کاري لائحه تصويب او دې محترم کميسيون ته وروسپارل شوه له هغه وخت څخه تر اوسه پورې د تصويب شوې لائحې په بنسټ خپلو کارونو ته په ډېر جديت سره دوام ورکړی دی او تر اوسه پورې يې په مربوطه ولايتونو کې د ملکي تلفاتو اړوند راپوروته راټول کړي دي او کوښښ يې کړی دی چې د ملکيانو د تلفاتو په بشپړه توګه مخ نيوی وشي او يا تر نهايي حده پورې کمې شي. او د دغه خپلواکه ادارې په ذريعه خپلو ټولو مجاهدينو ته توصيه کړې ده چې بايد په خپلو عملياتو کې د ملکيانو د تلفاتو مخنوی وکړي. چې لله الحمد د امارت ټولو مجاهدينو ورته پوره توجه کړې ده اما په دې اړه چې کومې پېښې شوي دي تقريباً ټولې يې د امريکايانو او يا د مزدورې ادارې د اجيرو ځواکونو لخوا شوي دي چې بعضې يې وخت په وخت په ميډيا کې هم نشر شوي دي.

د افغانستان اسلامي امارت د مشر تابه او د ټولو مسؤلينو او مجاهدينو مهمه موخه او مقصد هم دا دی چې مسلمانانو او عامو وګړو ته ضرر ونه رسيږي او د همدغه مقصد په خاطر يې دغه اداره جوړه کړه او دغه مهمه دنده يې وروسپارله او په ډير جديت سره دې ادارې ته وويل شول چې په هيڅ صورت د ملکي وګړو مرګ او ژوبله د افغانستان اسلامي امارت ته د منلو وړ نده لکه همدا مضمون د نوموړي کميسيون په دوهمه ماده کې داسې بيان شوی دی

دوهمه ماده: دغه اداره مکلفيت لري چې ټول مجاهدين په ټولو ممکنه لارو پدې وپوهوي چې د اسلامي ارشاداتو له مخې د اسلامي امارت مشرتابه ته د عامو اولسي خلکو مرګ ژوبله په هيڅ صورت د منلو او زغملو وړ نده نو جداً دې د عملياتو پر وخت ورسره احتياط وشي.

د همدغې مادې په اساس د افغانستان اسلامي امارت په کراتو مراتو او په ډير جديت سره خپلو ملګرو او مجاهدينو ته توصيه کړې ده چې په هره ممکنه طريقه چې وي بايد د ملکيانو د تلف او ضرر مخه ونيول شي. او د همدغه مقصد لپاره په مختلفو وختونو کې مخلتفو ځايونو ته هيئتان هم ليږل شوي دي. او په خپلو اعلامو او پيغامونو کې يې په

خصوصي توګه دې مقصد ته خصوصي توجه کړې ده.

همداراز د نوموړي کميسيون د مهمو دندو څخه يوه دنده د ملکي تلفاتو د پيښو هر اړخيزه څېړنه او تحقيق دی. په همدغه اساس هره ورځ او غټه پيښه چې د ملکي تلفاتو په رابطه پيښه شوې ده او نوموړي کميسيون ته يې راپور ورکړل شوی دی نو تر اخري حده پورې يې د هغې پيښې بشپړه څېړنه کړې ده. او عاملين يې په ګوته کړيدي او د امکان په صورت کې يې لازمه سزا ورکړې ده.او متضررو وګړو سره يې خپله خواخوږي له نړدې څخه شريکه کړې ده.

لکه سږ کال د جوزجان ولايت دخام آب په ولسوالی کې ملکي تلفاتو په اړه د اسلامي امارت د نوموړي کميسيون هر اړخيزه څېړنه وشوه . په نتيجه کې دا جوته شوه چې له کله نه چې د مزدورې ادارې د اول مرستيال په مشرى د جوزجان په ځينو ولسواليو کې عمليات شروع شول نو په همدغه بهانه يې مظلوم او عام وګړو ته سخت تلفات ورسول او خپل پخوانی عادت يې تکرار کړ چې له کبله يې له (۲٦) څخه زيات د مظلومو مسلمانانو کورنه چور او وسوزول شول . چې د ملکي تلفاتو د مخنيوي ادارې سره يې مکمل ليست او د کورونو د خاوندانو شهرت موجود دی.

تر ۳۰۰ (درى سوه) پورې موټرسايکلان او او تر ٤۰ پورې موټران د مزدورې ادارې د معاون رشيد دوستم د ځواکونو لخوا چور شول. علاوه له دې څخه ٦ ملکی وګړي هم د دوستم د مليشو لخوا په شهادت ورسېدل . د دې عملياتو مشري خپله دوستم کوله په منطقه کې يې سخت وحشت او بربريت پيل کړی وو چې خلک د سخت مشکل سره مخ وو او اوس هم مخ دي .

د افغانستان اسلامي امارت په هم هغه وخت کې له نږدې څخه د عامو او متضررو خلکو سره تماس ونيوه او د پيښې ټول جزيات يې تر لاسه کړل او له ځان سره يې راجستر کړل. او ټکي په ټکي يې دغه پيښه د ملل متحد د مربوطه څانګې سره شريکه کړه. چې هغوی يې د حل پوره اطمنان ورکړ. همداراز د دغه پيښې د متضررينو سره د تماسونو او د جګ پوړو مسؤلينو په شمول يو هيئت وليږه او د دوی په ذريعه خپله خواخوګي ابراز کړه. ځکه د عامو خلکو او مسلمانانو کړاو او رنځ د افغانستان اسلامي امارت خپل کړاو او رنځ ګڼي.

همداراز کله چې په کندوز کې د بې سرحده ډاکټرانو د جراحي په روغتون د امريکايانو هوايي بريدونه وشول نو د ملکي تلفاتو د مخنيوي ادارې له هم هغه وخت څخه دغه پيښه تعقيب کړه او د نورو پيښو په څير يې هره ورځ څيړله چې جزيات يې په لاندې ډول دي.

د تلې په لسمه کال ۱۳۹٤ ل (۳ ۰ اکتوبر ۲۰۱۵م)د افغانستان په وخت د سهار د دوه بجو او اتو دقيقو څخه د دريو بجو او پنځلس دقيقو پورې په کندوز کې د بې سرحده ډاکټرانو د جراحي په روغتون باندې امريکايانو پرله پسې هوايي بريدونه وکړل چې د راپورونو له مخې او د بي بي سي د فارسي شبکې يو خبريال وويل چې کندوز کې د بې پولي ډاکټرانو پر روغتون حمله کې پنځه نوي تنه د روغتون عمله او ملکي وګړي شهيدان شوي چې د اکثرو جسدونه يې پيژندل شوی او د يو شمير مړو پيژندنه لا نه ده تر سره شوې.

د بې پولې ډاکټرانو ادارې د امریکایانو دغه هوایي برید وغاند او وویل چې د تلې په لسمه د افغانستان په وخت د سهار د دوه بجو او اتو دقیقو څخه د دریو بجو او پنځلس دقیقو پورې په کندوز کې د بې سرحده ډاکټرانو د جراحي په روغتون پرله پسې هوایي بریدونه وشول چې په هرو پنځلس دقیقو کې دا بریدونه تکراریدل.

د دغې ادارې د بیان له مخې په دغو بمباریو کې دروغتون اصلي ودانی، د روغتون د جدي څارنې، عاجل اطاق او د فزیوتراپي خونو باندې سخته بمباري وشوه د بې پولې ډاکټرانو عمومي مشر وایي چې د برید په مهال د دوی ۷۰ تنه کارکوونکې او تر ۱۰۰ ډېر ناروغان په روغتون کې وو، ایم ایس ایف وایي چې دغې ادارې په خپل روغتون د بریدونو د مخنیوي لپاره له برید څخه ۳ ورځې وړاندې په کندوز کې د خپل روغتون جي پي ایس په وسیله خپل موقعیت په باب معلومات ائیتلافي ځواکونه ته ورکړي وو

د کندوز د ځایي اوسېدونکو له قوله په دوه اوونی کې داسې وخت هم راغلی چې پرلپسې څلورویشت ساعته بمباري روانه وه.

د دوی په خبره بهرنیو هوایي ځواکونو دې ته نه کتل چې ښار دی، کور دی، باغ دی یا هم د وسله والو طالبانو کوم مرکز، له یوې مخې یې بمونه ورول.

د کندوز د عامې روغتیا رییس ډاکټر سعد مختار وایي چې په دې جګړه کې ۱۵۲۰ تنه ملکیان ټپیان د دوی تر روغتونه رسول شوي چې ۱۳۰۰ یې مېرمنې او ماشومان دي.

بیا د سه شنبه د تلې (میزان ) ۱۴ مه، ۱۳۹۴ل په افغانستان کې د امریکایي ځواکونو قومندان، جنرال کمبل یوې خبري غونډې ته په خبرو کې په کندز کې د بې پولې ډاکټرانو پر روغتون هواي بریدونه تائید او پړه یې په اصطلاح د ګډ حکومت پر ادارې واچوله او زیاته یې کړه چې افغان ځواکونو له امریکایانو څخه غوښتي و چې پر روغتون دې بمونه ووروي.

له دې څخه یوه ورځ وروسته یعنې چهارشنبه د تلې (میزان) په ۱۵مه، ۱۳۹۴ل د مزدورې ادارې د دفاع وزارت ویاند ، جنرال دولت وزیري هم ومنله چې امریکایي الوتکو د دوی په غوښتنه په کندز کې روغتون په نښه کړ.

د امریکایانو په نسبت د اسلامي امارت مجاهدین چې کندز ته داخل شول نو کومه داسې جدي پېښه د دوی لخوا نده پیښه شوې چې ملکیانو ته یې زیان اړولی وي او یا مجاهدینو په خپله عام وګړي شهیدان یا ټپیان کړي وي. دا ځکه چې د اسلامي امارت او د ملکی تلفاتو د مخنیوي د ادارې د مهمو دندو څخه یوه مهمه دنده د عام وګړو د ضرر څخه اجتناب دي.

له دې څخه علاوه

د اسلامي امارت د ملکي تلفاتو د مخنیوي ادارې په تیر شوي زېدیز کال ۲۰۱۵ کې د ملکي وګړو د تلفاتو جمله ( ۱۳۷) پیښې له ځان سره راجستر کړي دي. چې جمله شهیدان او ټپیان (۲۱۰۶) دي په دې کې (۴۷۴) شهیدان اوجمله:(۱۶۳۲ ) ټپیان دي. چې په سلو کې ۹۸ سلنه د امریکایانو اشغالګرو او د مزدورې ادارې لخوا ترسره شوي دي.

د افغانستان اسلامي امارت د ملکي تلفاتو د مخنیوي د ادارې لخوا

# که غـــــواړي چې

# ليکنه مو جالبه شي

م محمود

يوي عربي پاني ليکلي دي،که غواړي چي ليکنه مو جالبه شي او ده کتونکو دپام وړ وګرځي نو لاندیني عوامل په نظر کي ونيسي أو دا هغه عوامل دي چي د ليکني په جالبتيا کي ډير مؤثر أومهم رول لري،

**أول، صحت يعني سم والي او خه جوړښت داملاء،**

د شنونکو په اند په هغه ليکني کي چي داملاء لحاظ سوي وي دا ليکنه کولاي سي چي دکتونکو توجه راجلب کړي او په زړونو کي ئي قرار ونيسي،او په مقابل کي يي هغه ليکنه چي د املاء مراعات نه وي پکښي سوي هرخومره که يي مضمون مهم او دقدر وړ وي مګر بيا هم خپل قدر او ارزښت دلاسه ورکوي اوکتونکي ته د ذهن سترړيا پيداکوي،

**دوهم، مراعات اولحاظ داشاراتو دليکني،**

مثلا که جمله مستأنفه وه يعني بله خبره شروع کيدله نو لازم دي چي هلته د تفريق اشاره راوړه سي مثلا/يا | ، أو که جمله استفهاميه وه يعني دمخاطب څخه يي پوښتنه کوله نو لازم دي چي هلته بايد داستفهام اشاره راوړه سي مثلا?، أو که جمله معترضه وه يعني د ماقبل او مابعد سره يي ربط نه درلود نو هلته لازم ده چي دغه جمله به دقوسينو په مينځ کي راوړه کيږي مثلا( )،وعلى هذا القياس،داځکه چي ده اشاراتو مراعات اولحاظ کول دليکني په فهمولو کي ډيرستر حيثيت لري،

**دريم، جالب عنوان کيښودل،**

د څيړنکو په وينا هر هغه ليکنه چي عنوان يا په بله اصطلاح د سرتکي، ولري هغه ليکنه جالبيت ترلاسه کولاي سي أو ترڅنګ به يي ليکونکي داکوښښ هم کوي چي عنوان په مهم لباس کي راوړي،

**څلورم، دمضمون نادر والي،**

څيړنو دا ثابته کړي ده چي هر څومره چي دليکني مضمون دکتونکو داذهانو څخه ليري وي هغومره يي جالبيت زياتيږي،

**پنځم، دمضمون تمثيل،**

يعني که چيري ليکنه داسي ليکنه وه چي په ژوندي بڼه يي په عکس يعني په تصوير کي تمثيل ممکن وو لازم ده چي تصوير به ورسره نشرته سپارل کيږي،

**شپږم، سياسي ليکنه،**

څيړنوالو دا ثابته کړي ده چي په شريکو رسنيو کي دسياسي ليکنو کتونکي په زياته کچه ليدل کيږي،

**وهم، دتړولني ده آدابو لحاظ،**

يعني بايد په ليکنه کې داسې الفاظ شتون ونلري چې د آدابو خلاف وي أو نازيبا کلماتي وي،

**أتم،**

د ليکنې اختتام به په داسې جملو کوي چې مخاطب هم په دي پوه شي کلام ختميدونکي ده چې په اصطلاح دبلغاؤ يي،حسن الاختتام،بولي،

**نهم، متل ياضرب المثل راوړل،**

شنونکو دا ثابته کړي ده چې ضرب المثل هم وه ليکنې ته جالبيت ورکوي،

**لسم، سهل الفهمه ليکنه،**

يعني ليکنه بايد نه غاية اختصار او نه هم غاية تطويل پکښې وي،

# څېړنه: جورج بوش

## دامريکايي ولسمشرانو ترمنځ ډېر ناپوهه وو

په امريکا کې نوې ترسره شوې څېړنه، چې له څلويښتو کلونو راهسې ترسره کيږي وايي: دامريکا پخوانی ولسمشر- جورج ډبيلو بوش دامريکايي ولسمشرانو ترمنځ ډېر ناپوهه وو،خو ولسمشر نيکسون په تېرو پنځوسو کلونو کې تر ډېرو ښيا زيرکه او پوه وو.

دسلوک او چلند په اړه څېړنې وړاندوينې که څه هم اټکلي هغه وي هغه څه باوري کوي، چې ديو چا په اړه عمومي مالومات او انګيرنه وي. په بنسلوانيا ايالت کې د لوونستين فی سکرانت،ن انستيتوت تېره دوشنبه دخپل ډول يو ښساري راپور خپور، چې ليکلو يې څلور مياشتې وخت نيولې دی او په دې وخت کې يې دامريکا دپخواني ولسمشر جورج بوش د زيرکتيا او پوهې کچه ارزولې ده.

له ۱۹۷۳ ز راهسې ياد انستيتوت د روزنيزو موخو لپاره دامريکا دهر ولسمشر- په اړه خپل راپور خپروي، چې په دې کې ښيا زيرکتيا او پوهه غوښنه برخه جوړوي.

له تېرو پنځوسو کلونو راهسې له اف - ډی روزولټ څخه نيولی تر جورج ډبيلو بوش ۱۲ ولسمشرانو په اړه څېړنې شوې دي او دڅېړنو اساس او بنسټ دهغوي فکري پنځونې په پام کې نيولې دي.

۱ -هغه کتابونه، چې پخوانيو ولسمشرانو د خپلو کارمندانو له مرستې پرته ليکلي دي.

۲ -دخبرو او وينا وړتياوې، رواني لاملونه، چې په پرلپسې توګه د زيرکتيا او پوهې دمالومولو سيتسم څارلي او ثبت کړي دي.

د زيرکتيا دکچې دمالومولو څيړنې دهر ولسمشر هغه په ډېره باريکۍ سره څارلې ده، تېروتنې احتمال يې ۵٪ کی او امريکايي ولسمشران په لاندې توګه دي.

په تېرو پنځوسو کلونو کې د شپږو جمهوري غوښتونکو ولسمشرانو د زيرکتيا او پوهې کچه د۱۱۵.۵ وه، په دې کې د ولسمشر نيکوسن دزيرکتيا کچه ۱۵۵ ټاکل شوې وه او دولسمشر- جورج بوش ۹۱ .

د ديموکرات ګوند دولسمشرانو د زيرکتيا او پوهې کچه ۱۲٦ ښودل شوې ده، ولسمشر ليندن جونسون د ډيموکرات ولسمشراتو تر منځ د لږپوهې څښتن بللې شوې دی، دزيرکتيا کچه يې ۱۲٦ وه.

دجورج بوش بله ستونزه داوه، چې پر انګليسي يې پوره لاسبري نه درلوده، دوييوزيرمه ٦۵۰۰ لغته اټکل شوې وه خو په منځنۍ کچه د نورو ولسمشرانو د وييو زيرمه ښيا ۱۱ زره لغته ښودل شوې ده، پردې سربېره جورج بوش کوم اکاډيميک اثر نه لري، يوازې په اداره او منجمنت کې يې ماستري ترلاسه کړې ده، داسې کوم اثر نه لري، چې اکاډيميک ارزښت ولري.

له بوش پرته نورو ټولو امريکايي ولسمشرانو لږ تر لږه يو کتاب ليکلی دی، چې ددوی دمسلکي ژوند په اړه دی، څکه د نوموړي په ارزونه کې د بوش له وينااو ګټه پورته شوې ده.

# الفـــوز الأكـــبر
## في شرح الفقه الأكبر

عبيد تنوير

دامام اعظم ابوحنيفه رحمه الله دعقايدو دمشهور كتاب (فقه الاكبر شرحه ، الفوز الاكبر) چې دهيواد مشهور محقق او جيد عالم ، قاري مولوي عزت الله تاليف دى ، په ښكلي قطع اوصحافت ، د۴۰۰ سوو مخونو په زخامت له چاپ څخه راووت.

ديادي شرحي ځانګړتيا داده چې محترم مولف، دعلم التوحيد اوعلم التصوف امتزاج اوګړون په ښكلي تشريح اواسانه ډول راوړى ، دبيلګي په توګه ، علم التوحيد دالله تعالى دذات اوصفاتو څخه بحث كوي، خوعلم تصوف په هغه سربيره بيا ددې لته او كوشش كوي چې څنګه دالله تعالى دسپيڅلي ذات اوصفاتو حقيت او تقرر په زړونو اوجوارحو كې ځاى ونيسي ، لكه مونږ عقيده لرو چې جنت حق دى ، داچې دغه عقيده په څه ډول زړه ته كوزه شي او مقام درجا يعني انتظار دخير پيداشي ، په دغه كتاب كې د هغو په وجوهاتو اومراتبو بحث شوى ، يالكه مومنان عقيده لري چې جهنم اواور شته اوحق دى ، داچې زړونه ته په څه ډول دغه عقيده ولويږي اومقام دخوف من الله ورته پيداشي ، په الفوزالاكبر كې پرې بحث او په زړه پورې تشريح شوي ، همداسې نور.....

يادې وي ، چې دمحترم مولوي صاحب نور قيمتي تاليفات هم شته ، لكه دامام طحاوي رحمه الله دكتاب (العقيده الطحاويه شرح ، (الدره الناجيه فى شرح العقيده الطحاويه ) بل دعلم نحوه دمشهور كتاب الكافيه ، شرح (المقاصد الشافيه فى شرح الكافيه ) همدارنګه په علم التفسير كې دمدارك شريف شرح (فتح الجليل فى تسهيل مدارك التنزيل) چې زياتره يې چاپ او څه يې چاپ ته چمتو دي.

الله تعالى دې دممتاز عالم محترم قاري صاحب له نبوغ څخه ډک تول ديني اوعلمي خدمتونه اوشاهكارى په خپل دربار كې قبولي او دنورو هڅو او تاليفاتو دچمتو كولو توفيق ورپه برخه كړي.

امين

خود گنه كاريم و از دنيا شكايت مى كنيم
غافل از خود، ديگرى را هم قضاوت مى كنيم
كودكى جان مى دهد از درد فقر و ما هنوز
چشم مى بنديم و هرشب خواب راحت مى كنيم

خبیر احمد مجاهد

# د اسلامي بصیرت اوخلوص ددنګ منار درحلت اوفراق په ویر کې ......... !!!

مرحوم مولوي سیدمحمد حقاني ، هغه پرافتخاره اوباوقاره هستی وه چې خپل عمر ټولې لحظې اوشپې ورځې یې داسلام دمقدس دین دلوړاوي اودمحمدي شریعت دنفاذ په غم اوهڅه کې صرف اوتیرکړل .

شاوخوا یوویشت کاله دمخه کله چې په افغانستان کې دفساد او بربریت په ضد دطالبانو اسلامي حرکت پیل شو له هماغه ورځې بیا دمرګ ترسلګیوپوري دعزت او معنویت دغه نومیالی سالار یو ساعت اویوه لحظه هم پرته لدې چې داسلام او هیواد په سرشاره خدمت بوخت ووسي بل شغل او بنیادي بوختیاپې نلر له .

مستعد اوسرلوړی حقاني صاحب ، داسلامي امارت په لیکو کې له فرهنګي مورچله نیولې ، بیا ترلوړو سیاسي اوتولنیزو خدمتونو اودندو پورې ،چې کومه یوه به هم ورلغاړې شوه ، دهغه دمخلصانه اومدبرانه قیادي هلوځلو ورسته بـه هغـه اساس او اداره په ډیرلږ وخت دنظم ، شفافیت او ترقی یوه نه هیریدونکی نمونه اومثال و ګرځیده

منلي حقاني صاحب ، دخپلو حسنیواخلاقو اوخاصو کمالاتو په مټ ذهنتونه جوړول ، دملګرو ترمنځ بـه یې دریښتیني اخوت فضا حاکموله ، دنفرت ، کرکي اوتعصب دجرړو بیخکني به یې کوله اودهرمسلمان په غم به غمجن اوپه خوشحالی به یې خوشاله وو .

دپاک ضمیره حقاني صاحب ، تقوا صرف دهغه په وینا کې نه وه خلاصه، بلکې څه به یې چې ویل هغه ته بـه یې دعمل جامه هم ور اغوستله ، دبیت المال په حسابونو او شتمنیو کې بـه نهایی حساس او محتاط وو ، زیات کوشش یې داکاوه چې دجهاد مال په شخصي حاجتونو کې ونه لګیږي.

په نورو اوبې شمیره ځانګړتیاوو سربیره، مجاهد حقاني صاحب دجامع او خواخوږي فکر څښتن وو، تل به یې مجاهدینو او ملګرو ته ددې خبرې توصیه اوتلقین کاوه چې له ولس سره نیک اونرم چلند وشي ، همیشه به یې په مجالسو اومشورو کې هغه طرحه اوپریکړه تائیدوله اوترجیح به یې ورکوله چې ګټه او نفع به یې مخامخ عام ولس ته رسیدله.

خو الله تعالی ته نوره همدا منظوره اومقدره یې وه چې زمونږ له منځ نه به دا نازولې اومتبرکه هستی اخلي اوخپل لور تـه به یې بولي...

یاالله مونږ خو دحقاني صاحب په رحلت او وفات سخت وردیدلو ، په فراق یې زمـونږ زړونـه قلم شـول ، هغـه یـو دریش صفته قاید، بې ریا مجاهد، د اخلاقو معلم، دخواخوږی اومیني مرجع اودځوریـدلو پرګنـو لـوی غمخـوار وو ، تـه یـې ټول خدمتونه ، جهادونه اوسعیې په خپل دربارکې قبولې اومنظورې کړې، کورنی ، دوستانو اومجاهدینو ته دجمیل صبر اواجـر ترڅنګ ته پرې دنعم البدل انعام ولوروه . امین ثم امین

په تلوتلوکې، دښایسته حقاني صاحب، حسیني ځوانی او پاکو ولولـو تـه دغـه پښـتو لنـډۍ ډالـی کـوم اودخـاصي میني احساس پرې اوبووم چې : مرګیه صبر راته وکړه.....مادیار ی بندونه اوس ترلی دینه !